محسن

د قرآني زده کړو او پوهنې لړۍ

۹۳

# د «ضحی» سورت تفسیر

په پښتو

ژباړه او څېړنه :

احمد حسین عنایت

د ضحی سورت تشريح
ژباړه او څېړنه:
احمد حسين عنايت

بسم الله الرحمن الرحيم
د لوراند او لورين الله په نامه
سورةالضحی

# د ضحی سورت (۹۳)

د «ضحی» سورت مكي دی (۱۱) آيتونه يوه ركوع لري په تلاوت كې (۹۳) په نزول كې (۱۱) سورت دی د «فجر» له سورت څخه وروسته نازل شوی دی

## له مخکېني سورت سره يې اړيکه:

د تلاوت په لړ کې له دې څخه مخکينی سورت «ليل» دی ددې سورت ورته والی له مخکيني سورت سره ډېر څرګند دی او داسې ښکاري چې د مخكيني سورت د موضوع تسلسل او بشپړوونکی وي. په مخکيني سورت کې د امت په اړه ذکر وو او دلته د حضرت رسول په اړه دی.

د «ليل» سورت د « وَلَسَوْفَ يَرْضَى » له آيت سره پای ته رسيږي او په آخرت کې د متقيانو او پرهيزګارانو د هڅو له پايلې د هغوی په آخري او وروستني «رضايت» ټينګار کوي، او د «ضحی» سورت له دې رضايته نمونه، بېلګه او مصداق، تأويل او تحقق د الهي مخلوق د غوره ترين، يعنې حضرت محمد مصطفی (ص) په اړه د «وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَى» له جملې سره څرګندوي. په هغې سورت کې په يو تولېز بيان سره، الله ته د آخرت او لومړني پيدايښت پر حتمي او له شک پرته تعلق او اړيکه ټينګار کوي « وَإِنَّ لَنَا لَلْآخِرَةَ وَالْأُولَى » او په دې سورت کې خاص پخپله د حضرت رسول اکرم په اړه د پيل او ابتدا په نسبت د آخرت د بهتروالي، څرګندونه کوي. « وَلَلْآخِرَةُ خَيْرٌ لَكَ مِنَ الْأُولَى». د «ليل» په سورت کې د متقيانو د لوړ ليد او اوچت نظر څرګندونه کوي چې اړمنو او نيازمندانو ته په انفاق کې د هغوی له لوري کوم «نعمت» او بدل ته په تمه او سترګې په لار نه دي «وَمَا لِأَحَدٍ عِنْدَهُ مِنْ نِعْمَةٍ تُجْزَى » د ضحی په سورت کې له ربوبي ځانګړي «نعمت» څخه چې د تقوا په پايله کې حاصليږي د شکر او تسل لپاره د يادونې ذکر کوي « وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ ».
هلته له هاغې هدايتي دندې چې الله پر خپله غاړه اخيستې ده يادونه کوي «إِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدَى» او دلته د هغې له عيني او شاهدې نمونې څخه « وَوَجَدَكَ ضَالًّا فَهَدَى ».

د مخکيني سورت په سوګندونو کې له شپې او ورځې [په انفعالي اړخ کې ] هغه مهال چې [ځيزونه] پټوي يا ځلا ورکوي نښانه راوړي « وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى ، وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّى » او ددې سورت په سوګندونو کې [له فاعلي اړخه] اصل نور او رڼا ته يې [نه اغېزو او آثارو ته يې او د لمر په نسبت د ځمکې موقعيت ته] اشاره کوي « وَالضُّحَى ». لکه د هدايت د لمر په وړاندې د خلکو د موضع او موقعيت مقايسه، نسبت هغه نور او رڼا ته چې له هغې لګيږي [نبوت]. که په تولېز حالت کې، شپه

تول ځیزونه، او کافر، د حق نور پټوي « وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى »، [په خپله د پیغمبر] په خاص حالت کې، شپه د سکون او هوساینې له اړخه چې د استراحت او د ځواکونو د تجدید لپاره مطرح کېږي «وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَى » چې د سورت د سیاق په تناسب چې پیغمبر ته د ځانګړو ربوبي لطفونو ذکر دی، ډېر هم غږی اوسي. ځکه چې هلته غائبو وړ او شایستګانو ته د الله د مضاف ربوبیت خبره ده «إِلَّا ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِ الْأَعْلَى» او دلته دهغه یو حاضر مصداق ته د مضاف ربوبیت مکرره خبره ده: «مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ ... وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ ... وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ ...»

او په پای کې په دواړو سورتونو کې له «غنا»[بې نیازه کوونکی مال] شخه یادونه کوي، خو لکه څنګه چې ددې دواړو سورتونو په نومونو کې [لیل = شپه. ضحی = د نور او ورځې ځلا او رڼا] ښکاره تضاد او تقابل دی، مال او ثروت د یو شمېرکسانو لپاره له حق څخه بې نیازي او هلاکت رامنځته کوي «وَأَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنَى ـ وَكَذَّبَ بِالْحُسْنَى» او ځېنو کسانو لکه پیغمبر ته تشکر او تقرب دی. «وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنَى ».

په لاندینې جدول کې ددې دوو سورتونو ورته آیتونه او مفردات ښوول کېږي.

| | موضوع | د «لیل» سورت | د «ضحی» سورت |
|---|---|---|---|
| ۱ | سوګندونه | وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى ، وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّى | وَالضُّحَى ، وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَى |
| ۲ | آخرت او اولی | وَإِنَّ لَنَا لَلْآخِرَةَ وَالْأُولَى | وَلَلْآخِرَةُ خَيْرٌ لَكَ مِنَ الْأُولَى |
| ۳ | راتلونکی رضایت | وَلَسَوْفَ يَرْضَى | وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَى |
| ۴ | نعمت | وَمَا لِأَحَدٍ عِنْدَهُ مِنْ نِعْمَةٍ تُجْزَى | وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ |
| ۵ | غِنی | وَأَمَّا مَنْ بَخِلَ وَاسْتَغْنَى،..وَمَا يُغْنِي .... | وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنَى |
| ۶ | هدایت | إِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدَى | وَوَجَدَكَ ضَالًّا فَهَدَى |

## د سورت د مضمونونو محور او محتوی:

د دې سورت محتوا، د هغه د نوم او لومړني سوګند سره متناسب د لمر له تدریجي پورته کېدو سره «والضحی»، د پیغمبر پر قلب د الهي وحی د وخت په وخت ظهور { وصل او قطع } له بریښنده ځلا سره او د انسانانو د عالم په افقونو کې د نبوت د نور په تدریجي ځلا او ځرګندېدنه اړه لري او پر هاغه سپېڅلي او پارسا پیغمبر د ربوبي ځانګړو لطفونو او پاملرنو پر محور تېکاو دی.

لکه څنګه چې د لمر نور ورو ورو په تدریجي توګه راپورته کېږي چې سر تر سره نیمه کره تېوله په خپل یون او پرله پسې توب او تداوم کې نغاړي، ربوبي لطف او رحمت هم په تدریج او منظم ترتیب د پیغمبر د وجود مناسبې، برابرې او چمتو شوي برخې نیسي او د هغه د نفس نیالګی د فضایلو په فضا کې راپورته کېږي او وده کوي. په دې ترتیب هغه څه چې په دې سورت کې پرې ټینګار شوی دی، یو ثابت او ټاکلی لطف او رحمت نه، بلکه د هغه استمرار او ادامه په مهالي مختلفو مقاطعو کې [له پیله

تر پايه] ده او لکه د لمر د تدريجي پورته کېدو په څېر، د هاغه سپېڅلي او اطهر پيغمبر په روحي زمينه او تړاو ددغه خاص او ځانګړي نعمت بشپړېدل ننداري ته ايږدي. درې ځله د الله له تېرو لطفونو يادونه کوي، درې ځله هم له اوسنيو او راتلونکو لطفونو، او درې ځله هم له هاغو ژمنو او مسئوليتونو يادونه کوي چې پيغمبر او لارويان يې ددغو نعمتونو په وړاندې لري. لکه څنګه چې مخکې وويل شول، د «ليل» په سورت کې يو شمير اصول او معيارونه مطرح کوي چې انسان له هغوی سره په هم غږۍ، آسانۍ [يسر] ته او له هغوی سره په تضاد، سختۍ [عسر] ته رسيږي. په دې سورت کې ددې موازينو او معيارونو مشخص مصداق او عيني تحقق د يو مشهود شاهد په توګه لکه د حضرت نبی اکرم په وجود کې څرګندوي، چې الله څه ډول د بخشش، تقوی او تصديق اهل ته کار آسانوي او هغوی هدايت، نعمت او رضايت ته رسوي دا د الله خاص بنده چې د يتيمۍ او غريبۍ په کوره او بټۍ کې ښه پوخ شوی وو، اوس دادی د هغه د خالصانه عملونو او کړنو له لامله يې خاص لطفونه په برخه کيږي او د وحی د نزول مهبط او وړ ګرځي. نو په دې ترتيب دا سورت، د «ليل» د سورت د الهامونو تأويل او د هغه د ژمنو او وعدو تحقق ګڼل کيږي.

په دې سورت کې د هغه له لنډيز سره سره [۱۱ لنډ آيتونه]، ۹ ځله د «ک» مخاطب ضمير او ۴ ځله د امر فعل [پيغمبر ته خطاب] کارول شوی دی، چې په نورو سورتونو کې دا ډول نسبت په نظر نه راځي. چې دا مسئله حضرت رسول ته ربوبي نهايي عنايت او پاملرنه څرګندوي.

ګواکې د رسالت په پېر کې د وحی د لنډمهالې ځنډ او تمبدنې او د حبيب او محبوب د اړيکې لنډ ېبلتون، د الله رسول ته تشويش او خوابدي پيدا کړې وه چې د دا ډول آرام ببنونکي ډاډګېرنې لامل شو. د الله حبيب له دې چې داسې نه چې د بې مهرۍ او د معشوق د ترک وړ شوی وي، پريشان وو نو محبوب ورته ډاډګېرنه ورکوي چې نه يې ترک کړی دی او نه له هيڅچا سره دښمني کوي [خپل ځان دې لا څه کوې چې له هيڅچا سره]. که د هاغه آشنا په الهام، او د وحی په القاء کې کوم فترت، واټن او ځنډ راغلی، يو حکمت پکې دی چې د هغو لومړنيو درندو القاء ګانو [د علق او مدثر او ...سورتونو] پسې، آرامتيا او هوساينه وموميې او د ډېرو درندو بارونو تحمل او لېږد ته چمتو شي [ إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا] [المزمل ۵(۷۳:۵)] مونږ به ډېر ژر درنده وينا تاته القاء کړو [ لازمه ده چې له شپېنيو تمرينونو او تمرکز سره ځان جوړونه وکړې او تياری ونيسې]. يو فرصت دی چې د وحی هغه مهبط او منزل د الهامونو له درانده فشاره آسوده شي او قلب او قدم يې استوار او ګامونه يې پاخه شي:. ...كَذَلِكَ لِنُثَبِّتَ بِهِ فُؤَادَكَ وَرَتَّلْنَاهُ تَرْتِيلًا.[الفرقان ۳۲(۲۵:۳۲)] [هو] دا ډول ده [له دې لامله تاته سوکه او ورو ورو نازليږي] چې ستا زړه پرې استوار کړو او [له دې لامله] هغه مو تاته په تدريج او ځنډ ځند ووايې. إِنَّ نَاشِئَةَ اللَّيْلِ هِيَ أَشَدُّ وَطْئًا وَأَقْوَمُ قِيلًا [المزمل ۶(۷۳:۶ )]. بې له شکه په شپه کې څرګند شوی [له تلاوت او تذکر څخه حاصل روحي تحول په ورځ کې د حق په لار کې] د کلکو او محکم ترو ګامونو ايښوولو او استوار ترې وينا لامل کيږي.

دا د پالونکي «رب» تقدير او تدبير وو چې د بندګانو له تربيت څخه مخکې يې خپل خاص بنده له جسمي او روحي ليده تر اغيز لاندې راووړه او د هغه اند او غړي، روح او جسم او ځان يې ورته له دې نابېره غورځنګ، تغيير او اووښتون سره برابر او هم غبرګ کاوه. مګر داسې نه ده چې د هغه حکيمانه مشيت او غوښتنه تل د سببونو او طبيعي لاملونو په مجرا کې جريان مومي او استعدادونه د زمان په بستر کې په تدريج، ورو ورو په ځنډ ځنډ فعليت ته رسوي، نو ولې د دا ډول استعداد رشد، وده او کمال نابېره او د نورو ښکارندو د تدريجي کمال له عمومي مجرا او تګلارې څخه بېل، دباندې او خارج بڼه ونيسي؟. که د وحی او نبوت لمر په هماغو قانونو کې شامل دی چې د شمسي منظومې لمر وريورې تړاو لري، خامخا طلوع او غروب يې هم، سره له دې چې زموږ له درک څخه غائب او پټ وي، هماغه حکمت لري چې لکه څنګه چې د شپې او ورځې تناوب يې لري.

او دادی د تيارې او يوازېتوب د شپې له تېرېدو وروسته، د پالونکي رب د تقدير او تدبير لاس، يو نا سنبالی اړمن او نيازمند يتيم چې د هاغې روزګار د حيرت او هک پک تيا په بيابان کې يې، د واکمن جهالت او ظلمت له بې لاريو څخه د نجات او ژغورنې لار لټوله، له ځانه سره نيسي او هغه چې د دردونو او رنځونو د ازموينو په بټۍ کې پوخ شوی وو د نورو د هدايت لپاره ټاکي او لېږي. اوس هغه کريم يتيم، يتيمانو ته د محبت او مينې درس (فاما اليتيم لا تقهر)، د نيازمندانو سره مدارا (و اما السائل فلا تنهر) او د ربوبي نعمتونو پرله پسې يادونه (و اما بنعمة ربک فحدث) د نور او ځلا د لارې لارويانو او پليونانو ته ورزده کوي. او پر موږ د الله ځانګړې لورينه ده چې د هغه د لارې په لاروي توب او له سنتو په تبعيت او پليونۍ يې له تيارو څخه د نور او رڼا په لور خارج شو. ځکه چې:اللَّهُ وَلِيُّ الَّذِينَ آمَنُوا يُخْرِجُهُمْ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ.... [(البقره (۲۵۷ :۲)]. الله د هغه چا ولي [سرپرست او پالونکی] دی چې ايمان يې راوړی دی، هغوی [تل د شرک، کفر، جهل او ځور] له تيارو د [ايمان او اخلاص] د رڼا په لور خارجوي.....

د «ضحی» او «انشراح» سورتونه ډېريو، يو سورت ګڼلی، البته د دواړو سورتونو ترمنځه د «بسم الله» په نه ويلو سره په پرله پسې توګه په «ضحی» پسې د «انشراح» سورت وايي په لمانځه کې کولی شې هر دواړه سورتونه په يوه رکعت کې ووايي. يعنې تر دې کچې يو تر بله اړيکه لري چې يو ګڼلی شي.
د قرآن د څېنو سورتونو يو تر بله اړيکې ډېرې نژدې دي چې يو ګڼل شوي دي؛ لکه اتم او نهم سورتونه، «انفال» او «توبه».

ځينې سورتونه يو په بل پسې د يوه مطلب بيانوونکي دي، زيات نه زيات له دوو يا څو متفاوتو زاويو څخه. دا دواړه سورتونه د پيغمبر په اړه دي او هر دواړه د بعثت د دويم کال په پيل کې نازل شوي دي. لومړی «والضحی» او بې له ځنډه وروسته ورپسې « انشراح». په بله وينا، د نزول په ترتيب کې دا دواړه سورتونه يو په بل پسې نښتي دي. په لومړي سورت کې د خبرې مخه پيغمبر ته ده او د «کَ» (ته، تا) ضمير حضرت رسول ته خطاب لس ځله پکې تکرار شوی دی، لکه: وَدَّعَکَ، رَبُّکَ، خيرٌلکَ،

يُعطيکَ، يَجِدکَ، وَجَدکَ، درې ځله نېغ په نېغه پیغمبر ته خطاب شوی دی: فلا تَنهَر، فلا تَقهَر، فَحَدِّث. په ورپسې سورت (انشراح ) کې، هم پیغمبر نهه ځله د وحی مخاطب شوی دی. دا دوه سورتونه، په واضحه او څرګنده بڼه، د پیغمبر په نسبت د پالونکي رب بې نهایته لطف، محبت او عنایت څرګندوي. د «ضُحی» په سورت کې خبره دپیغمبر د ماشومتوب، زلمیتوب او ځوانۍ د دوران په اړه ده. په ورپسې سورت کې له هغه دورانه خبره کوي چې پیغمبر رسالت ته رسېدلی دی او له ستونزو سره مخامخ شوی دی.

## د «ضُحی» سورت د نزول شأن:

د «ضُحی» سورت، د وحی په لېړلو کې د تعطیل او ځنډ له یوه دوران وروسته، چې د وحی د «فَتَرت» په دوران معروف دی، یعنې هغه دوران چې وحي د یوې مودې لپاره ځنډول شوې او قطع شوې وه نازل شوی دی. د پیغمبر رسالت د علق سورت د هماغه پنځه آیتونو له نزول سره پیل شو او تر ځو نورو مباشتو پورې پر پیغمبر وحی رانغله. هغه پنځه آیتونه، لومړني الهي پیغامونه دي:

اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ. خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ. اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ. الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ. عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ. [العلق ۱– ۵ (۱ - ۹۶:۵)]. ولوله د خپل پالونکي رب په نامه، هغه چې [هر څه يې شته کړل او ] و يې پنځول. انسان يې له علق [ځوړندي پرنډې وينې] پيدا کړ. ولوله چې ستا پالونکی رب [تر ټولو] ډېر کريم [او عزتمن] دی. هغه [پالونکی] چې د قلم [د کارونې] په توسه يې ښوونه کړې ده، انسان ته يې هغه څه وروښوول، چې پرې نه پوهېده.

لومړنۍ وحی تر همدې ځایه پای ته رسېږي. پیغمبر هغه مهال چې دا ندا او پیغام مومي، ډېر سخت وارخطا او مشوش کېږي، ځکه چې نه پوهېده څه ورته پېښ شوي دي. د حرا له غاره ډېر په بېړه، وېره او تشویش کې له دې چې هسې نه چې په مالیخولیا یا بې خودۍ اخته شوی وي، په داسې حال کې چې له سختې سړه لړې تبې لړزېده کورته راستنېږي، په داسې ډول چې مېرمن يې حضرت خدېجه، په تشویش کېږي او پتو راوړي او حضرت رسول پکې رانغاړي. او د همدغه تشویش په حالت کې، د «مزّمّل» سورت نازلیږي: يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ. [المزمل ۱(۷۳:۱)] یا هم شاید د «مُدّثر» سورت. «مزّمّل» یعنې هغه چا چې اغوستن له ځانه تاو کړی وي. او «مُدّثر» یعنې هغه څوک چې د خوب په اغوستن کې ویده دی. يَا أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ. قُمْ فَأَنذِرْ. [المدثر ۱ – ۲ (۱ – ۷۴:۲ )] ای د خوب په اغوستن کې ویده، پاڅه! اوچت شه او وېره ورکړه؛ انذار وکړه.

د تاریخ له مخې دومره ډېر څرګند نه دي چې له دې دوو سورتونو یا شاید هم له ځېنو نورو سورتونو وروسته، چې پس له دوی راغلي د څه مودې لپاره د وحی په نزول کې ځنډ راغلی دی. په هر حال، ډېره زیاته موده نه وه. خو په دې اړه راز راز روایتونه راغلي دي، دولس ورځې، پنځلس ورځې، نولس ورځې، پنځه ويشت ورځې او ځېنو څلوېښت ورځې نقل کړي دي. د قرآن د تحول سیر د کتاب د محاسباتو پر بنسټ، چې د ریاضي د شمېر او د هر سورت یا د هر سورت د مختلفو برخو د نزول د

شمېر له لارې یې څېړلې دي، د «ضحی» سورت کابو د وحی له یو کال ځنډ وروسته نازل شوی دی. نو په دې موده کې حضرت رسول اکرم ډېر په تشویش او پرېشان وه چې ولې وحی پرې نه نازلېږي. ښکاره خبره ده داسې یو عاشق چې د خپل معشوق او محبوب سره یې اړیکه پیدا کړې ده او یو وصال هم ورته حاصل شوی دی، زړه یې تنګېږي او نا آرامه کېږي، احساس کوي معشوق ترې لېرې شوی دی. په ځانګړې توګه په داسې یو حالت کې چې خپل رسالت او د وحی پیغام یې خپلو شا او خوا اطرافیانو ته لېږدولی وو. په دې ترتیب د وېرې، وحشت او یوازېتوب احساس د پیغمبر د وجود سر تر پایه تړل نیولی وو. کابو ټول مفسران، او هم هغه روایتونه او اخبار چې په دې اړه راغلي دي، ټول له دې حکایت لري چې ددې دواړو سورتونو نازلېدل د فترت له دوران څخه وروسته او د پیغمبر د تسل او ډاډګېرنې او ددوی د روحي تقویت لپاره دي.

---

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ

وَالضُّحَى﴿١﴾

سوګند پر څاښت [غرمې، د ورځې پر رڼا او د لمر پر ځلا] (1) [= د ورځې په پیل کې د لمر د نور ځلېدل او خپرېدل]

وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَى﴿٢﴾

او پرشپه هغه مهال چې تیاره [او آرامتیا] یې، ټول ځایونه ونغاړي [او شومه دم شي]. (2)

---

دا سورت له دوو سوګندونو سره پیلېږي: سوګند پر لمر او د ورځې په څرګندېدو. وَالضُّحَى. «ضُحى» یعنې د لمر رڼا، د لمر ځلا. دا یو سوګند، دویم، وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَى. قسم پر شپه هغه مهال چې خپرېږي یا ټول څیزونه پټوي او نغاړي. «شپه» هماغه پیل ته یې ویل کېږي چې د لمر پرېوتو پسې سمدلاسه پیل کېږي او هوا ورو ورو مخ په تیاره غوني شي، او کله چې یو یا دوه ساعته له غروب تېر شوي وي چې تیاره په بشپړه توګه بر لاسي شي او شپه آرامه شي او په اصطلاح شومه دم شي، او په عربي کې ورته «سُجُوّ» وایي،«سَجا اللّيل» یعنې شپه له خپلې تیاره سره هر څیز پټوي. نو یو سوګند هم د ورځې د نور پر ځلا او وړانګو او یو هم د شپې پر تیاره او ظلمت دی. دا دواړه پدیدې او ښکارندې یو تر بله متضادې دي. له بل لوري ورځ د کار او هڅو مهال دی او د هغې په

پای کې، کله چې له ورځني کار څخه ستړي شوي يو او وروسته له هغې چې د هوا تياره هر ځای ونيسي، د تن او ځان د استراحت او هوساينې او د ستړيا د لېرې کولو مهال رارسيږي. نو، دا دوه آيتونه د دوو داسې مطلبونو د بيان په مقام کې دي چې يو د بل په تناوب او تداوم کې دي.

يا په بل عبارت داسې ويلی شو چې قسم پر دغو دوو څيزونو يوه اشاره لري او هغه داده چې دلته د ورځې په پيلامه او ځانښت او شپه سوګند خوري ددې لپاره چې د پيغمبر هغه حالت چې د وحی لمر پرې ښکاره شوی دی او بيا ورپسې يې خپله څيره پټه کړې ده، د لمر ظاهري او جسماني ښکاره کېدو او بيا هم ورپسې، د شپې راتګ ته ورته دی. په حقيقت کې فرمايي: پر تا د وحی په ضحی او د وحی پر طلوع سوګند او له تا څخه د وحی پر پټېدو سوګند. په حقيقت کې دلته غواړي چې دا نکته پيغمبر اکرم ته وويل شي چې د وحی د برېښنا څرګندېدل او بيا وروسته ددې برېښنا نه څرګندېدل او دا چې ته د يوې مودې لپاره له وحی جلا پاتې شي له دې مسئلې سره هيڅ اړيکه نه لري، چې ته دې الله وړ نه وې بللی، پرېښی يې اوسې، او د غضب لاندې يې نېولی اوسې ، بلکه دا يو منظم حساب لري؛ لکه څنګه چې په مادي او جسماني عالم کې که لمر راخېژي او طلوع کوي او ورپسې شپه راځي، شپه د غضب علامت او نښه نه ده بلکه دا شپه هم د ورځې تر څنګ اړينه ده، د وحی دا تمېدل او ځنډېدل او دا روحي شپه، ستا لپاره اړينه او ضروري ده او بايد داسې واقع شوي وای.

په اروا پېژندنه کې د يوې جملې ذکر کوي چې ښايي دلته هم د تطبيق وړ وي عجيبه جمله ده؛ وايي: «انسان په اوړي کې سکي زده کوي او په ژمي کې لامبو»، سره له دې چې قضيه ددې پر عکس ده او انسان د سکي لوبه په ژمي کې کوي او په اوړي کې لامبو کوي. مقصد دادی چې: په ټوليزه توګه دا د انسان لپاره يو رواني او اروايي خصلت دی چې کوم مهال چې له يو کار سره مخامخ کېږي په پيل کې پر هغه کار منطبق او د هغه کار لپاره چمتو نه دی، خو که د يوې مودې لپاره دا کار تمرين کړي او بيا يوه موده تمرين ونکړي، د هاغې مودې په خلال کې چې تمرين نه کوي روح يې په خپل باطن کې، خپل ځان دغې نوې واردې شوې کړنې ته چمتو کوي پرته له دې چې د انسان پام ورته وي. انسان په ژمي کې سکي کوي او په اوړي کې يې پرېږدي خو داسې خيال مه کوئ چې په اوړي کې د انسان روحي حالت د هماغه وخت په څېر دی چې اصلاً يې سکي نه کاوه، بلکه په دې

منځ کې خپل روح دې تازه وارد لپاره چمتوکوي. د انسان په بدن کې له دې چې یو ژوندی موجود دی او د انسان روح چې د حیات جوهر دی، په دواړو کې دا ډول یو خصلت شته. له وحی سره د مخامخ کېدو مسئله هم همدا ډول یو څیز دی. وحی د لومړي ځل لپاره په څلوېښت کلنۍ کې پر پیغمبر نازله شوه، وروسته له ډېرو کلونو زیار او تمرین چې په اصطلاح د هغه د تحنّف او عبادت دوره وه. کومه وحی چې پر پیغمبر نازلېده له هغو وحیو جلا وه چې پر نورو پیغمبرانو نازلې شوې وې او د وحی ډېره سخته درنده درجه کې ده، په داسې ډول چې کله لومړنۍ وحی پرې نازلیږي په داسې ډول سخته او درنده وه چې لکه خپل تعادل یې له لاسه ورکړی وي، کله چې په بېره کورته راستنیږي په پرله پسې توګه خدیجې ته وایي «ما پټ کړه غواړم استراحت وکړم» ته به وایې چې ډیر زیات دروند پېټی یې ورته پر اوږو ایښی دی. سره له دې چې دا بار، روحي او معنوي دی، خو روحي بار هم د انسان تن ستړی کوي.

په دغه موده کې چې پیغمبرته د وحی راتګ ځنډ شوی وو او وحی تم وه سمدم لکه د شپې په څېر یو حالت لري چې د هوساینې او ارامتیا دوره ده؛ یعنې اوس دې د یوې مودې لپاره راحت او آرام پرېږدو چې ښه پوخ او چمتو شې. دا له تا څخه د وحی د پرې کېدو په معنا نه ده، بلکه په دې معنا ده چې د وحی د دوه درې ضربو [ګوزارونو] وروسته چې پر تا راغلل او ته یې له ځانه بې ځانه کړې، د یوې مودې لپاره باید آرام او دمه وکړې. په دې دوو قَسَمونو کې او له دې وروسته یې واقعاً د خبرې تعبیر، د ښکلې مینې او عطوفت، او د محبوب د مرحمت او محبت، او نغاړونکې خوښۍ، په زړه پورې زمزمه او سرود بیان کړی دی. دا مهر او عطوفت، مینه او لورېینه، دا مرحمت او محبت، دا خوښي او رضا، او آهنګ او سرود ټول او دا ټول له منظمو او لطیفو عبارتونو، او له نرمو او ظریفو وییونو، چې موسیقي یې د زړه راښکونکو انګازو لرونکي ده، څرګندیږي. چې دا ټول زړه راښکونکې غبرونه او انګازې هربند یې د مینې محبت، هېلو او ارزوګانو، تسل او ډاډګېرنې، پېرزوېنو او لورینو، او د انسان جوړونې او د انسان د ودې او تکامل بار او درس له ځانه سره لېږدوي.... کله چې سپېڅلې رب غوښتي د دغه ښکلې او زیبا مینې او مهربانۍ، او ددې نغاړونکې خوښۍ او رضا، او د دغه آهنګ او زړه راښکونکې سرود لپاره چوکاټ جوړ کړي، دا چوکاټ یې د ورځې له روڼ ځاښت، او تیاره شپې له شومه دم څخه غوره کړی دی، دوه داسې مهالونه چې د شپې او ورځې له ټولو مهالونو ډېر

صفاتر، او ډېر سوتره تر مهالونه دي چې په هغوی کې تدبّر او تفکّر ګل کوي، غوړېږي او بېه نېسي، او روح له هستې او د هستۍ له رب او پنځوونکي سره اړيکه مومي، او عبادت او د ټول جهان په توسه د الله نمانځنه احساسوي. او مومي چې ټول جهان له تسبيح، تقديس، خوښۍ او سپېڅلتيا سره د الله په لور مخه کوي. پاک رب شپه او ورځ په مناسبو الفاظو انځور کړې ده. او شپه: وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَى دلته نو شپه په عامه او کلي توګه موخه نه ده. ځکه چې شپه يو مهال تورتم او ډارونکې ده. بلکه د شپې هغه مهال مقصد دی چې آرامه وي او تياره شوې وي، شومه دم شي او ټول ځايونه ونغاړي. د شپې دا وخت په زړه پورې، ارام او صفاتر دی.

سپېڅلی رب د خپل شناخت او پيژندنې پر دوو نښو او آيتونو سوګند خوري، پر ښکلو او الهام ببښونکو نښو. د جهان څرګندې پدېدې د انسان له دننيو احساساتو سره ښنلوي. د انسان زړه ته د آګاهانه او له دې ژوندۍ ښکلې هستۍ سره د هم غږې ژوند الهام کوي، هغه ښکلې او زيبا هستي چې له هر ژوي سره مينه او عطوفت لري. په پايله کې د انسان زړه له دې هستۍ سره په انس او الفت ژوند کوي. په دې جهان کې نه وېرېږي او نه وحشت کوي. او نه غريب، بې ټاټوبي او نه تنها کېږي ... په دې سورت کې په ځانګړې توګه دا انس او الفت په څرګنده توګه خپل اغېز او تاثير لري. د انس او الفت غځېدل موخه ده. ګواکې سپېڅلی الله د سورت په همدغه پيل کې وحی کوي چې پالونکي رب يې په دې جهان کې د هغه ګرد چاپېره انس او الفت شېندلی او خپور کړی دی. او له دې لامله نه ورسره جفا کېږي او نه يوازې پاتې کېږي. له دې الهام او جهاني پيغام وروسته، مستقيم او نېغ په نېغه تأکيد، ټينګار او ډاډګېرنه رسېږي:

---

۱ـ د «فجر» طلوع او څرک د شپې د تياره پای او «صبح»، د ورځې تولد او تنفس [وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ – تکوير ۱۸ (۱۸:۸۱) ] او د طبيعت له ښکلا د پردې لېرې کېدل او تفسير دی [وَالصُّبْحِ إِذَا أَسْفَرَ – مدثر ۳۴ (۷۴:۳۴) ]. د صبح [ګهيځ] په ساه اخيستو هوا روښانه کېږي، خو له افق څخه د لمر په څرک وهلو، د لمر د نور په تدريجي پراختيا ټول ځايونه تاوده او نوراني کوي. «ضُحى» هغه مهال ته ويل کېږي چې د لمر وړانګې د دښتې پراخوالي ته خپرې شوې وي.

۲ـ که د فجر له طلوع څخه د لمر تر ختو او ځلېدو پورې يو ټاکلی زماني واټن دی، د لمر له پرېوتو څخه د شپې تر بشپړې تياره پورې هم له يوه ساعته ډېر وخت نيسي.«وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَى» سوګند پر همدغه مهال دی چې ته به وايې ظلمت او تياره [ لکه د باطل جنګ له حق سره] پر رڼا له غلبې سره

سم، پر ځمکه هستوګنه شوې او په تپل شوي بشپړ او مطلق تورتم کې يې آرام کړی او تياره پردې يې ټول ځايونه نغاړلي دي[وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى–ليل۱ (۱:۹۲)].

سوګند د لمر پر طلوع او د ورځې پر بشپړې او کاملې رڼايي، له دې وروسته سوګند پر شپه هغه مهال چې آرامېږي او ژوي د استراحت لپاره او د ورځې له ستړيا د استراحت او هوساينې لپاره خپلو ځالو، جونګړو، ماڼيو، خېمو او کورونو ته ځي، د طبيعت او نبوّت او د وحي د نزول تر منځ يوه سريزه، مقايسه او پرتله ايزه کړنه ده چې په هغه کې لنډمهالی ځنډ، تعطيل او تناوب يو طبيعي امر دی. الله تعالی د شپې تياره پرده د آرامتيا او سکون لپاره يو پوښښ، او ورځ يې د هڅو، تلاش او يون لپاره مقرر کړي دي: «هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا...»[يونس ۶۷ (۶۷:۱۰)]. لکه څنګه چې الله تعالی شپه د استراحت او خوب لپاره يو پوښښ او د ورځنې کار د تعطيل او دمې وسيله ګرځولې ده: «وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِبَاسًا وَالنَّوْمَ سُبَاتًا...» [فرقان ۴۷ (۴۷:۲۵)].

له لمر پرېوتو څخه وروسته او له مطلقې او بشپړې تياره څخه مخکې مهالونه هم د ډېر عبرت او پند او د زده کړې وړ دي او الله تعالی پر دې مهال هم سوګند خوړلی دی:«وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ» [تکوير ۱۷ (۱۷:۸۱)]، همدا راز يې په مقابل لورکې، د فجر له طلوع څخه مخکې د تياره په نری کېدلو سوګند خوړلی دی: « وَاللَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ » [مدثر ۳۳ ( ۷۴:۳۳)]، همدا ډول «وَاللَّيْلِ إِذَا يَسْرِ » [فجر ۴ (۸۹:۴). په طبيعت کې د نور او ظلمت، د رڼا او تياره تحولونه لکه په تاريخ کې د حق او باطل، عدالت او ظلم د تحولونو په څېر دي.

---

مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَى﴿۳﴾

[چې هيڅکله] پالونکي رب دې، نه پرېښی نه يې او نه[درسره خوابدی او] بې مينې شوی دی.(۳)

وَلَلْآخِرَةُ خَيْرٌ لَكَ مِنَ الْأُولَى﴿۴﴾

او هرومرو آخرت [= راتلونکی او پای] به درته تر اول [دنيا، يا د رسالت تر ړومبی] غوره وي.(۴)

وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَى﴿۵﴾

او خامخا بې له شکه ستا پالونکی رب به ژر [دومره] درته عطا کړي [او درکړي]، چې راضي [او خوښ] شي.(۵)

خو کومه پایله او نتیجه چې غواړي واخلي: لومړی دا چې مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ. «وَدَّعَ» له «وداع» سره له یوې ریښې دی. «وداع» یعنې لېږې والی، وداع له یو چا سره یا یو څیز سره، یعنې له هغه لېرې کېدل. وداع کله د تل لپاره وي او کله لنډ مهالې وي. «ما» هم د «لا» په معنی دی. «مَا وَدَّعَكَ» یعنې رب دې له تا سره وداع نه ده کړې او ته یې پرېښی نه یې. نو ولې په تشویش یې؟ ولې ناراحت یې؟ ولې غم خورې؟ یار دې در سره قهر نه دی کړی؛ ته یې ترک کړی نه یې. وَمَا قَلَى. له تا سره یې بدي هم نه ده کړې، پر تا غوسه نه دی. یو مهال دی چې تاسو یو څوک بې له دې چې ستونزه ورسره لرئ ترک کوئ، خو یو مهال له هغه خفه کېږئ او د هغه له لاسه ناراحت او غوسه کېږئ او له دې لامله یې ترک کوئ. فرمایي داسې نه ده، مه ناراحت کېږه. ستا رب ته پرېښی نه یې او نه له تا خفه دی او نه پر تا غوسه دی.

کله چې الله تعالی، هغه هم خپل پیغمبر ته خطاب، د سوګند له لحن سره خبره کوي ډېر د پېرزوینې او مهربانۍ بوی ورکوي. ددې سورت لحن په ډېره اوچته سطحه د پېرزوینې او عطوفت سره ګډ دی. سوګند د ورځې پر مهال او سوګند پر شپه چې د استراحت او دمې وخت دی چې پالونکي رب دې ته نه یې خوشې کړی او د غضب لاندې یې نه یې نیولی. فرمایي «رَبُّکَ»؛ پر دې یو هېرو چې د «ربّ» په مفهوم کې بشپړونه او پالنه ده. ستا پالونکی، مربی او بشپړونکی او مکمِل خدای، هغه خدای چې ستا پروردګار او پالونکی دی، هغه لاس چې تاته پالنه درکوي، ته یې پرېښی نه یې او د غضب لاندې یې نه یې نیولی. او له تا سره یې جفا نه ده کړې، لکه څنګه چې ځینو کسانو ګومان کاوه، هغوی غوښتل چې ستا روح ته آزار ورکړي او ستا زړه په درد کړي، تا خوابدی کړي او خاطر دې پرېشان کړي ... هغه ستا پروردګار او پالونکی دی، او ته دهغه بنده او پر هغه پورې تړاو لرې، هغه ستا پالنه کوي او د خپل ملاتړ او ساتنې تر سیورې لاندې دې محفوظ او ژغورلی ساتي. هغه ستا ساتونکی او کفیل دی. د هغه د فضل، لطف، برکت، عطا او بخشش چینه نه وچیږي. دا شوه لومړۍ پایله. او په دې پسې ورته وایي: ستا پایله به په پرله پسې توګه له وسمهال بهتره او غوره وي.

دویمه پایله: وَلَلْآخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ مِنَ الْأُولَى. «آخرت» له «آخِر» څخه دی او له «آخَر» سره توپیر لري. «آخَر» یعنې «بل» یا «بَعد»، «وروسې» خو «آخِر» یعنې انتها او پایان. «أُولی» هم یعنې اوّل. وایي آخِرت، یعنې هغه څه چې سبا یا په راتلونکي ورځ به راشي ستا لپاره

به له نن ورځې څخه ښه او بهتر وي؛ یعنې هغه ستونزې چې وسمهال تاته پېښې دي، دا د مخالفتونو څپې، نښتې، کنځلې او زورلې، فشارونه، آزارونه، به ورو ورو مخ په لږېدو شي او وضع او چاپېریال به بهتر شي. «آخرت» ځینو دلته د آخرت او بل جهان په معنا، چې د دنیا په مقابل کې دی ګڼلی دی. خو دلته «آخرت» د «أُولی» یعنی «آغاز یا پیل» په مقابل کې دی، نه دنیا. وایي دا نهضت چې تا پیل کړی دی، په پیل کې به ډېرې زیاتې ستونزې ولري، خو وروسته به ورو ورو ستونزې کمې او کمترې شي.

په «لَلْآخِرَةُ» کې، «لام» د ټینګار او تأکید نښه او علامت دی. یعني په تحقیق سره چې هیڅ شک پکې نشته چې ستا انجام او پای ستا له آغاز او پیل څخه بهتر دی. د وحی له ځنډ سره پیغمبر ته دا تصور پیدا شو چې هسې نه چې دا لنډ مهالې معامله وه. البته د پیغمبر لپاره د وحی نازلېدل سخته او درنده تمامېدله خو ورته ډېره ښه او خوندره برېښېدله او په نه راتګ یې اندېښمن وو. قرآن فرمایي: نه دا لنډمهالې معامله نه ده، ستا انجام او پای ستا له آغاز او پیل څخه بهتر دی. سره له دې چې پیل او آغاز دې ښه وو پایان دې هم له دې ډېر بهتر دی.
پالونکی رب دې ستا لپاره پانګونه کوي هغه څه چې تا به خوښ او خوشحال کړي. تا به د بلنې او دعوت په کار کې بریالی کړي. ستا د لارې بندونه او خنډونه لرې کوي. ستا رسالت برلاسی کوي او ستا حقانیّت څرګند او ښکاره کوي.

دا هغه چارې وې چې د پیغمبر زړه یې بوختاوه. او په هغه حال او احوال کې چې د مشرکانو دښمنۍ، کینې، دروغ ګڼلو، آزار، ځورونو، مکر، چل او فریب سره مخامخ وو:
مخکې مو وویل «آخرت» یعنې پایان او انجام، « أُولی» یعنې پیل او ابتدا. کېدی شي دلته موخه په مطلقه توګه [پای او پیل ] وي چې قهراً داسې معنا کېږي: ستا پای ستا له پیله بهتره ده. قهراً د آخرت جهان دې له دنیا بهتر دی. [لنډه دا چې ] هر خومره چې پر هغه لور ځې ستا لپاره بهتر دی. لېرې نه ده چې دلته موخه همدا عمومي معنا وي.

دریمه نتیجه: وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَى. «سَوف» یعنې ډېر ژر. هغه یې د تأکید او ټینګار له «لام» سره هم راوړی دی، یعنی حتماً او قطعاً او پرته له هیڅ شک او تردیده، يُعْطِيكَ رَبُّكَ ستا پالونکی رب به دومره درته عطاء کړي، ورکړه او بخشش به درته وکړي. فَتَرْضَى. په داسې ډول چې ته به ترې راضي او خوښ شې. که نن د ستونزو او مصیبتونو سره مخامخ یې او له دښمنانو سره اخته یې، پوه شه چې دا ټول به ډېر ژر پای ته ورسېږي

او دا بشارت کېدی شي د خلکو له خوا د رسالت منلو او د رسالت په لار کې د ستونزو حل کېدو ته اشاره وي، يا کېدی شي هماغه د آخرت په معنا وي، په دې صورت کې وايي هېله من اوسه چې دا جهان چې لکه د برېښنا د چټکتيا په څېر تېرېږي، يو آخرت هم ورپسې لري چې په هغه کې به ته د خپلو هڅو او زحمتونو پايلې او موخې ته ورسېږې. تر دې کچې چې تا به راضي او خوښ کړي.

نو پر دې بنا له دوو قَسَمونو وروسته درې مطلبونه او پايلې راغلې: « مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَى» رب دې ته پرېښي نه يې، او پوه شه چې د لطف ، عنايت او پېرزوينې وړ يې. «وَلَلْآخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ مِنَ الْأُولَى.» نه يوازې دا چې د لطف او پېرزوينې لاندې يې لکه څنګه چې وې بلکه ستا آخَر ستا له اول څخه بهتر هم دی؛ يعنې له پخوا ډېر د لطف، عنايت، پېرزوينې او لورېنې وړ يې. نو لومړۍ جمله غواړي ووايي اوس هم د پخوا په څېر عنايت او پېرزوينه له تا اخېستل شوې نه ده، او په دويمه جمله کې په دې مطلب ټينګار کيږي. خو ورپسې جمله کې مطلب د عنايت او پېروينې له ليده نهايي درجې ته رسوي: نه يوازې داچې خدای ته پرېښی نه يې او نه يوازې دا چې هر څو مره چې مخکې ځې او وخت تېرېږي د هغه عنايت او پېرزوينه تاته له مخکې لا زياتيږي، بلکه الله به پرتا دومره پېرزوينه او لورېنه وکړي چې نور به دالله له عنايت او پېرزوينو ډک شې؛ مطلب داچې خپلو ټولو هېلو او ارزوګانو ته به دې ورسېږې. «وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَى» ستا رب به پرتا دومره عنايت او پېرزوينه وکړي چې ته راضي شې او ستا هغه هېله او ارزو [يعنې د هدايت هېله او ارزو] به پوره شي. چې دا ببرته له هماغه مخکيني آيت «مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلَى» سره تړاو لري. چې د وحی برېښنا، برېښ کړی وو. د وحی برېښنا هماغه د هدايت برېښنا وه؛ د نورو هدايت حتا د خپل ځان هدايت يې. الله به د وحی په توسه تا د بشر د هدايت لامل کړي [او دا هدايتونه به په آخرت کې د شفاعت په بڼه ځرګند شي] چې ته به پخپله راضي شې؛ يعنې هېلې او ارزوګانې به دې حاصلې او پوره شي.

موږ بايد وګورو چې قرآن د پيغمبر د دردونو، رنځونو او هيلو ارزوکانو په اړه څه ويلي دي. پيغمبر له څه څيز رنځېده او قهراً څه هېلې او ارزو ګانې يې درلودې؟ د کهف په سورت کې الله فرمايي: فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَفْسَكَ عَلَى آثَارِهِمْ إِنْ لَمْ يُؤْمِنُوا بِهَذَا الْحَدِيثِ أَسَفًا [کهف ۶ (۱۸:۶)] له دې آيته پوهېدی شو چې پيغمبر له کومو څيزونو رنځ وړه او هېلې او ارزوګانې يې په کوم چورليځ څرخېدې. الله تعالی پيغمبر ته وايي: ته لکه چې خپل

ځان تلف کوې ددې لپاره چې هغوی نه هدايت کيږي او ايمان نه راوړي. ته ددې لپاره چې دوی ايمان نه راوړي ځان وژنه کوې. پيغمبر په دې کچه لورينه، عنايت او هيله درلوده چې خلک هدايت شي او د هغوی له نه هدايت کېدلو رنځيده.

بل آيت: لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ [التوبه ۱۲۸ (۹ : ۱۲۸)] يو پيغمبر پخپله له تا سو، ستاسو له خپله جنسه، ستاسو له خپله منځه ستاسو لور ته راغلی دی چې ستاسو بدبختۍ، ستاسو دردونه، ستاسو رنځونه، ستاسو مشقتونه او ربړونه هغه رنځوي او کله چې ستاسو بدبختۍ ويني رنځ ګالي. نو دلته قرآن څرګندوي چې د پيغمبر رنځ له کوم ځيز څخه دی. حَرِيصٌ عَلَيْكُمْ ستاسو په اړه حرص لري. ډېر عجيبه تعبير دی. سړی خو د دنيا د مال حرص پيدا کوي، پرته له پيسو او مادياتو بل څه نه پېژني. قرآن وايي دا پيغمبر ستاسو د هدايت لپاره حرص کوي يعنې ټولو ارزوګانو يې ستاسو په نجات او ژغورنه کې تجسم پيدا کړی دی. بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ د مؤمنانو په نسبت مهربان دی. مترحّم دی، رحمت لري.

دا آيتونه څرګندوي چې پيغمبر له کوم ځيز خوښيږي او له کومه ځيزناخوښ وي. نو دا وعده چې وايي « ای پيغمبره! الله به تاته دومره درکړي چې خوشحاله شي» په دې معنا ده چې الله به تا دومره په دنيا کې د خلکو د نجات اوژغورنې وسيله کړي [او هماغه په آخرت کې د شفاعت عين وسيله کېدل دي] چې ته خپلې هيلې او ارزو ته ورسيږې.

لکه څنګه چې وويل شول، هغه څه به چې پر پيغمبر د وحی په توګه نازلېدل، حضرت به په دروندوالي او ستړيا اخته کېده، په داسې ډول چې خولې به يې پر تندي راماتې شوې. هغه چا چې د خپل عمر به اوږدو کې داسې ځيزونه نه وي اورېدلي او له وحی او له دې مسئلو څخه بېخبره وي او د قرآن په تعبير «اُمّی» دی، او نابېره له داسې پديدي سره مخامخ کيږي. قرآن پيغمبر ته وايي ته تر دې مخکې نه پوهېدې کتاب او ايمان څه دي: مَا كُنتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ. [الشوری ۵۲ (۴۲:۵۲)] پيغمبر له دې مسئلو سره آشنا نه وه، البته ډېر سپېڅلی او پاک انسان وه او په شرک يې هيڅ ککړتيا نه درلوده، خو د ايمان له څرنګوالي او کم و کيف څخه هم په څه نه پوهېده او اوس يو ناڅاپه له وحی او پاسنې عالم له القائاتو سرشار شوی دی. طبعاً دا ښينه د هغه لپاره ډېره سخته ستونزمنه او درنده تمامېده. که پاملرنه مو کړې وي، د قرآن لومړني نازل شوي سورتونه له دوو يا دريو کليمو سره پيل کيږي، په ډېر لنډيز او په اختصار. د قرآن لومړني سورتونه همداسې

دي، چون پيغمبر له دې څخه د زياتو زغم نه درلود او نه يې شو تحمل کولی. د هغه وزن بردار په څېر چې ځان يې لا چمتو کړی نه دی او اوس لږ لږ غواړي ځان ګرم کړي. درې يا زيات نه زيات پنځه کليمې. خو وروسته چې د وحی او الهي پيغام په اخېستلو کې د پيغمبر زغم او ځواک زياتيږي، آيتونه کله لس ګونو کليمو ته رسيږي، تاسو د بقرې سورت ۲۸۲ آيت و لولئ؛ يو مخ دی شايد د کليمو شمېر يې له يوسل او دېرشو څلوېښتو څخه زيات وي. د قرآن د آيتونو منځنی اوږدوالی هر څومره چې وخت تېر شوی زيات شوی دی. دا زغم او ځواک او چمتو والی چې پيغمبر وکولی شو اوږد ترو ضربانو ته هم تاب راوړي، په تدريج د ۲۳ کلونو په اوږدو کې حاصل شو. د اسراء په سورت [۷۹ آيت] کې الله تعالی پيغمبر ته توصيه کوي چې د شپې يو پار ويښ شي او عبادت وکړي. په شپېنيو عبادتونو کې مؤمن جوړيږي: وَمِنَ اللَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهِ نَافِلَةً لَّكَ عَسَى أَن يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُودًا.(۱۲) [الاسراء ۷۹ (۷۹: ۱۷)] د شپې يوه برخه ويښ اوسه. چې الله تا مناسبې پوړۍ ته ورسوي او پورته دې کړي. يا: إِنَّ نَاشِئَةَ اللَّيْلِ، هغه څه چې د شپې رامنځته کيږي، هِيَ أَشَدُّ وَطْءًا وَأَقْوَمُ قِيلًا. [المزمل ۶ (۶ :۷۳)] ګامونه به دې استوار تر او خبره به دې پخه او قوي کړي او تا به جوړ کړي. او تر دې په مخکې آيت کې وايي: إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا. [المزمل ۵ (۵ :۷۳)] ډېر ژر به مونږ تاته درنه وينا القاء کړو نو معلوميږي چې پيغمبر له پيله نه شو کولی «ثقيل قول» واخلي. زړه يې يا ادراکي ځواک يې يا هر څه چې تصور وکړو، ددوی د منلو ځواک زغم او تحمل نه درلود او د وجود ظرف يې په تدريج چمتو او چمتو تر شوی دی.

مونږ هر يو د خپل تحصيل په دوران کې که حساب وکړو، په تدريج او پړاو په پړاو مخکې راغلي يو؛ له لومړني ښوونځي، منځني ښوونځي ته، بيا لېسې ته او بيا پوهنتون ته، ځينې د ليسانس تر بريده را پورته شوي يو، ځنيې تر ماسترۍ او فوق د ليسانس او د دوکتورا تر کچې او وروسته له هغه د تخصص تر پړاوه. بيا وروسته شايد لس، شل کاله مو هڅه کړې چې د وخت په اوږدو کې يو څه علوم زده کړو. خو دا ټول پړاوونه په آسانۍ لاسته نه راځي، ستړيا، سختي او رنځ يې درلود. خو پيغمبر بايد په لږه او لنډه موده کې، لوړ معارف او پوهه هضم کړی او جذب کړی وای. نو کار په دومره ساده‌ګۍ نه وه، د انسان د مغزي سلولونو ظرفيت، د هغه زړه، يا هر څه چې فرض کړی، ورو ورو، تدريجاً مخ په زياتوالي ځي. نو پر دې بنا پوهېدای شو چې له هاغو لومړنيو پيغامونو وروسته، پکار وه

چې پيغمبر د لږې مودې لپاره استراحت وکړي او د ځواکونو تجديد او رغونه وکړي او خپل اعصاب آرام کړي او ويې غځوي چې جوړ او چمتو شي. همدا وه چې د يو پير لپاره د وحی قطع او ځنډ رامخته شو.

د مولوي په وينا:

مدتی اين مثنوی تأخير شد  مهلتی بايست تـا خون شير شـد
تا نزايد بخت تو فرزند نـو  خون نگردد شير شيرين خوش شنو

اوس د دغه تحليل په رڼا کې، کولی شو سوګندونه داسې تعبير کړو چې لومړی هدايتي نور او رڼا راځي: وَالضُّحَى. وروسې، لکه د شپې په څېر، چې آرامش او استراحت ورسره مل دی: وَاللَّيْلِ إِذَا سَجَى. ځنډ او دمه راځي، څوک دقيقاً نه پوهيږي ددې دوران د حکمت راز او سرّ څه وه. هغه څه چې خلکو حدس وهلی عمدتاً همدا دی چې الله تعالی پيغمبر ته د ځواک او انرژۍ د نوې کولو فرصت ورکړی دی چې وکولی شي خپل ځان نوو پيغامونو ته چمتو کړي. ځينو دا هم ويلي چې الله تعالی غوښتي منکران پوه کړي چې دا زما خبرې دي او که زه هغه قطع کړم، هغه به هيڅ پيغمبرانه خبره و نه لري. نو، پوه شئ چې دا د هغه خبرې نه دي او له بلې سرچينې راځي. که وحی راونه ليږل شي، دهغه لاس تش دی او له خپله ځانه پيغام نه لري، دا نظريه، د ډېر غور او تأمل وړ ده، په ځانګړې توګه زموږ په زمانه کې چې ځينې پر دې عقيده دي چې پيغمبر پخپله قرآن رامنځته کړی دی او دا کتاب د هغه خپلې خبرې دي. په داسې حال کې چې د «فَتَرت» پېښه په روښانه توګه څرګندوي چې د وحي د قطع او ځنډ په هغو څو مياشتو کې، پيغمبر د رسالت لرونکي نبي په عنوان د ويلو لپاره تازه خبره نه درلوده.

---

۳ ـ د لمر د نور په څېرېدو ، او په مقابل کې د شپې د تياره په څېرېدو تر سوګندونو وروسته، په دريم آيت کې د سوګندونو نتيجه بيانوي. ګواکې د رسالت پر مهال د وحی لنډ مهالي تمبدلو او قطع کېدلو او د لږ وخت لپاره ددې لړۍ پرې کېدلو، د حضرت رسول لپاره يو ډول تشويش او انديښنه را منځته کړې وه چې د دا ډول آرامتيا ښنونکې ډاډګېرنې لامل شو. د الله حبيب له دې وېرې چې هسې نه چې د محبوب د ترک او بې مهرۍ وړ ګرځېدلی وي، ډېر پرېشان او خوابدی وه او الله هغه ډاډه کوي چې نه يې ترک کړی دی او نه الله له چا سره دښمني کوي [ته خو لا څه چې له هيچا سره]. د «وَ مَا قَلَی» معنا کېدای شي له يوازيني بل مورد څخه چې په قرآن کې کارول شوی دی، ومومو؛ هغه مهال چې لوط خپل قوم ته وويل: « قَالَ إِنِّي لِعَمَلِكُمْ مِنَ الْقَالِينَ» [زه ستاسو له کړنو بېزار يم – شعراء ۱۶۸

(۱۶۸:۲۶) ]. که د وحی په الهام او القاء کې فترت او تمېدنه يا وقفه راغلې ده، په دې کې يو حکمت دی چې د هغو لومړنيو درنو القائاتو [ د علق او مدثر او ...له سورتونو] وروسته څه آرامش او استراحت ومومې او له دې څخه د درنو بارونو لېږ او زغم ته آماده او چمتو شي « إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا » [مزمل ۵ (۵:۷۳)]. د وحی ځنډ او قطع کېدل لکه د شپې په څېر چې د ستړي او مېنودل شوي تن لپاره آرام ببنونکي ده، يو فرصت دی چې پيغمبر د الهامونو له دروند فشاره هوسا شي او زړه او قدمونه يې استوار شي «...كَذَلِكَ لِنُثَبِّتَ بِهِ فُؤَادَكَ وَرَتَّلْنَاهُ تَرْتِيلًا »[فرقان ۲۲ (۳۲:۲۵)]،«إِنَّ نَاشِئَةَ اللَّيْلِ هِيَ أَشَدُّ وَطْئًا وَأَقْوَمُ قِيلًا» [مزمل ۶ (۶:۷۳)].

په دې سورت کې له لنډيز او اختصار سره سره يې [۱۱ لنډ آيتونه]، ۹ ځله د «ک» مخاطب ضمير او ۴ ځله د امر فعل [پيغمبر ته خطاب] کارول شوی دی چې نه ښکاري په نورو سورتونو کې دا ډول يو نسبت راغلی وي. چې دا مسئله مکرم پيغمبر ته نهايي ربوبي عنايت او پاملرنه څرګندوي. لکه څنګه چې د لمر نور په تدريج، ورو ورو راپورته کېږي او سراسر نيمه کره رانغاړي، ربوبي لطف او مرحمت په تدريج او منظم ترتيب د پيغمبر په پاک وجود خپرېږي او د هغه د نفس نيالګی د فضايلو په فضا کې را اوچتوي او وده ورکوي. په دې ترتيب هغه څه چې په دې سورت کې پرې ټينګار شوی دی، په زماني مختلفو پړاوونو کې د رحمت استمرار او پرله پسې توب دی چې لکه د لمر د تدريجي پورته کېدو په څېر، د پيغمبر په روحي زمينه کې ددغه خاص نعمت بشپړوالی څرګندوي.

۴- د اُولی په مقابل کې د آخرت راوړل، په بل عالم کې په ابدي او تلپاتې پای سربېره، کېدای شي د رسالت په بعدي او له دې وروسته پړاوونو کې هم شامل وي.

۵ ـ « سوف» له زماني پلوه د نژدې راتلونکي وعده ورکوي. که په مکه کې د رسالت د ابلاغ پېر له ډېرو ناتوانوونکو سختيو سره مل وه، د حضرت رسول د پيغام لمن په تدريج پراخه شوه او پر مکې او د عربستان د ټاپووزمې پر نورو برخو سربېره، په ټوله نړۍ کې خپره شوه او د رسالت په سرته رسولو او د امانت په اداکولو د رسول رضايت راپنډ او حاصل شو.

---

أَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَآوَى﴿٦﴾

آيا [داسې نه وه] چې ته يې يتيم ومونديې؛ نو پناه ځای يې درکړ [اوستا سنبالنه يې وکړه] ؟[۶]

وَوَجَدَكَ ضَالًّا فَهَدَى﴿٧﴾

او ته يې ورک شوی [=لار ورکی] ومونديې او هدايت يې کړې؟[۷]

وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنَى﴿٨﴾

او ته يې [تنګلاسی] او اړمن [=عيالمند] وموندې؛ نو غني [اوشتمن] يې کړې؟[۸]

اوس الله تعالی غواړي د پيغمبر د تېرشوي ژوند له پېښو څخه د مثال په توګه راوړي. لکه ځېنې وخت موږ هم هغه کس ته چې غم او خپګان لري نهيلی او مأيوس شوی وي، په تشويش کې وي د تسل او ډاډګېرنې لپاره ورته وايو چې مثلاً آيا دا دې لومړی ځل دی؟ مګر په ياد دې نه دي چې په ژوندانه کې دې څومره ستونزې او تکليفونه درلودل؟ مګر ياد دې نه دي چې کله کله به دې دومره پيسې هم نه لرلې چې د شپې ډوډۍ پرې ځانته برابره کړې؛ خو الله در ورسوله او ستا لاس نېوی يې وکړ. يعنې موږ هم معمولاً ددې لپاره چې چاته  روحيه ورکړو، د تېر ژوند په تجربو کې د نهيلۍ پېښې ورته په يادوو. اوس الله هم له هغو دريو ډاډګېرنو وروسته، پيغمبر ته د تسلۍ او لا ډاډ ګېرنې د ټينګار په توګه درې تېرې شوې پېښې وريادوي. تر څو ښه ډاډګېرنه او تسل ورکړي او هغه د خپل پالونکي رب پېرزوينې را په زړه کړي چې څه نېکۍ يې ورسره کړي دي. او څومره مينه، محبت او پېرزو يې ورسره کړې ده او څه فضل او فيض يې ور په برخه کړی دی. دا ډول خوښي او لذّت له ټولو خوښيو اوچت تر دی او يادول يې په دې نوې او ښکلې طريقه هغه ته نور هم اوچتوالی او رونق ورکوي.

لومړی: أَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَآوَى. آيا ته يو يتيم ماشوم نه وې چې موږ پناه درکړه؟ آيا همدا کافي نه ده پوهېږو چې د پيغمبر (ص) له زېږد مخکې د هغه پلار وفات شوی وو  او پيغمبر يتيم تولد شوی وو، د پيغمبر مور، کيدی شي د مېړه د وفات له خپګانه يا کومې بلې ستونزې له لامله، شيده نه درلودل چې ماشوم ته يې ورکړې وای. نو ځکه يې ماشوم سارا ته، بانډې ته، ولېږه، چې يوه ښځه د حليمه سعديه په نامه چې غريبه او بېوزلې ښځه وه، د مزد په بدل کې دې ماشوم ته شېده ورکړي. نو دا ماشوم په واقعيت کې له موره هم لېرې کېږي. له دوو، دريو کلونو وروسته چې هغه له سارا بېرته راستنوي، ظاهراً له هاغه مهال سره برابر دی چې په مکه کې وبا خپره وه. له ناچارۍ ماشوم بېرته سارا ته ګرځوي او تر پنځه کلنۍ پورې يې هلته ساتي. يعنې دې وړوکي ماشوم نه د پلار محبت وليد او نه يې مور ورسره وه. په شپږ کلنۍ کې يې مور هم وفات مومي او په دې ترتيب ماشوم يوازې يو کال د خپلې مور محبت ويني. نو پيغمبر سربېره پر دې چې يتيم وو، لطيم هم وو. هغه چاته چې پلار يې له لاسه ورکړی وي «يتيم» وايي او هغه چاته چې مور او پلار

دواړه له لاسه ورکړي وي «لطيم» وايي. له هغې وروسته يې نيکه عبدالمطلب د هغه پالنه او سرپرستي په غاړه اخلي، چې هغه هم دوه کاله وروسته، يعنې د پيغمبر په اته کلنۍ کې له دنيا ځي او دا ماشوم د دريم ځل لپاره يتيم کيږي. د عبدالمطلب تر وفات وروسته، تره يې ابوطالب،[د حضرت علی پلار]، ماشوم تر خپلې څارنې او سرپرستۍ لاندې نيسي. نو په دې ډول د پيغمبر د ماشومتوب دوره تېرېږي: يتيمي له يتيمۍ پسې. او دا يوازې ويلو ته آسانه برېښي، د ابوطالب کورنۍ سره له دې چې ډېره سخته فقيره او بېوزلې وه، د خپل وراره پالنه او سرپرستي يې ومنله. د پيغمبر د زېږد پيل چې ټول په سارا او له کورنۍ لېرې تېر شو او وروسته بيا هم چې راغی چې لږ شان سنبالنه ومومي، مور او نيکه يې له لاسه ورکړل. او تاسو پو هيږئ چې په دنيا کې داسې پېښې لږې نه دي شوي چې ماشومان د يتيمۍ له اغيزه د بېوزلۍ او لوږې له لامله له منځه تللي او مړه شوي دي. په همدې اوسنۍ نړۍ کې، د نړيوالو شمېرنو له مخې، په افريقا او نورو ځايونو کې هره ورځ له درې زرو ډېر يتيم ماشومان له لوږې مري. دلته الله تعالی بيا هم خپل پيغمبر ته وريادوي چې له درې ځله يتيمۍ سره سره يې، بيا هم هغه ته پناه ورکړه او له يوه پناځای څخه يې بل پناځای ته بوولی دی. فرمايي موږ د خپلې ساتنې، ملاتړ او حمايت سيوری پر تا غوړولی دی چې دې وکولی شو سختۍ او ستونزې شاته و غورځوې. نو لومړنی تسل او ډاډګېرنه د پيغمبر د پېر خوږنې او ماشومتوب له دورانه يادونه ده.

دويم: وَوَجَدَكَ ضَالًّا فَهَدَى. «ضالّ» يعنې لاروکی، ګمراه يا بې لارې. فرمايي مونږ ته لار ورکی ومونډې او هدايت مو کړې، لار مو در وښودله. دلته لازم ګڼم د ډېريو مفسرانو هغه نظريې او ليد ته اشاره وکړم چې وايي انبياء، ټول له آدمه تر خاتمه، پلار په پلار او نيکه پر نيکه موّحدين ول او اصولاً مؤحد زېږېدلي دي په داسې حال کې چې دا آيت په ښکاره او څرګند ډول پيغمبر ته وايي چې ته لار ورکی او ګمراه وې او موږ درته هدايت او لارښوونه وکړه. ځينو مفسيرينو چې نه شو کولی دا ومني چې پيغمبر لارورکی او ګمراه وو او نه يې شو کولی له دې اعتقاده لاس واخلي چې انبياء نسل په نسل او له زېږېدو مخکې هدايت شوي دي، نو څنګه چې لېدلي يې دي دا آيتونه د هغوی له تيوري سره برابر نه دي ويلي يې دي چې مطلب يې د پيغمبر د ماشومتوب په دوران کې د مکې په اطرافو کې له ورکېدو څخه دی. يو له همدغو مفسرينو اوه تاريخي پېښې ذکر کړي [او يو بل حتا ترشلو پېښو او احتمالونو ] چې هو، يو مهال چې د پيغمبر دايې هغه يوځای ته

بوته د لارې په منځ کې ورک شوی وو او په سارا کې، مثلاً د هوازن د قبیلې په منځ کې په اشتباهي لاره تللی دی. ځینو لیکلي دي چې نه، د مکې په پس کوڅو کې ورک شوی وو!
ښه نو، آیا واقعاً لاره ورکول تر دې کچې مهم دي چې د قرآن وحی ترې یادونه وکړي؟ زیاتره مورږ په وړوکتوب یا کیدای شي لویوالي کې لاره ورکه کړي وي او بیا یې پیدا کوو، یا مورږ پیدا کوي. دا داسې کوم مهم څیز نه دی چې الله تعالی وغواړي هغه په قرآن کې د پیغمبر مخې ته وکاږي؟ ځینو هم «ضالّ» په دې آیت کې «د نورو د ورک شوي» په معنا ګڼلی دی.یعنې مقصد یې دادی چې ته د ناپېژاندی او نایابه ګوهر په څېر وې چې هیڅوک درڅخه تر هغې خبر نه ول، چې مورږ ټولو ته ورو‌پېژاندې او ستا قدر یې وپېژاند او ستا د جوهر پېژندونکي شول.

خو باید پخپله په قرآن کې د «ضالّ» معنا او تفسیر ولټوو، قرآن په ځلونو ویلي چې پیغمبر اُميّ دی او له کتاب او ایمان ناخبره دی: اصلاً ته څه پوهېدې چې کتاب څه څیز دی: ... مَا كُنتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ و لا الإيمان.... [الشوری ۵۲ (۴۲: ۵۲)] او ومو ویل چې «کتاب» یعنې الهي قوانین او نظامونه، پیغمبر اصلاً له دې څیزونو هیڅ نه وه اورېدلي چې مثلاً د تورات او انجیل په نامه کتابونه شتون لري او دا آسماني وحیې دي، بالخصوص چې په ښار کې یې هم نه وو اوسېدلی. مرحوم دوکتور شریعتي یوه خبره لري چې وایي: پیغمبر د کلیمې په واقعي معنا «بې تربیت» وو، چون نه یې پلرنی تربیت اخیستی وه، نه مورنی تربیت او نه د مکتب او مدرسې تربیت؛ او نه چا دا ادعا کولی شوه چې د هغه مربي او معلم دی. په واقعیت کې لاس نه خوړلی، بکر او سپېڅلی روح وو، نو، د «اُمّي» عنوان هم یعنې همدا. له هماغه پیله الله هغه تربیت کړ او د هغه مربي شو.
پخپله له پیغمبره نقل شوی دی چې اَدَّبَنى رَبّى فَأَحْسَنَ تَأديبى.[نهج‌الفصاحه، ۲۱مخ] یعنې پالونکي رب مې زه په ادب کړم، ښه یې هم تادیب کړم. انسانان هر څه چې په وړوکوالي کې زده کړي، لکه د ډبرې د نقش په څېر یې، په ذهن کې حک کېږي. د ماشومتوب زده کړه د چا له ذهنه ایستل ډېر سخت دي. که څوک بد تربیت شوی وي او بد څرګند شي او هغه زده کړې چې د کوچنیتوب په دوران کې یې ورکړي دي غلطې وي، هماغه د هغه شخصیت ته بڼه ورکوي. نو پر دې بنا، دا پخپله د پیغمبر لپاره ستر توفیق وو چې د خپلې زمانې تر اغېز لاندې رانغی او څوک د هغه مربي نه شو او د هغه تربیت او روزنه یې ونکړه. هغه چې د زمانې رنګ یې نه وه اخېستی او بې رنګ وو، هغه یوازې الهي رنګ

واخيست چې له ټولو دنيايي اړيکو او تعلقاتو بې رنګي ده، مګر آيا په قرآن کې نه دي راغلي چې :«کوم کس په رنګ آمېزۍ کې له الله هنرمند تر دی؟» صِبْغَةَ اللَّهِ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ صِبْغَةً وَنَحْنُ لَهُ عَابِدُونَ [البقره ۱۳۸ (۲:۱۳۸)]. «[د تعصب وزمه اړيکو له رنګه] الهي رنګ ته داخل شئ، او څوک له الله ښخه په رنګولو کې بهتر او ښه دی؟ او موږ يوازی د هغه عبادت کوونکي او نمانځونکي يو.» پيغمبر هيڅکله له مذهبي اړخه فکر نه وو کړی چې پلانکۍ خبره يا کړنه، کفر يا شرک يا نفاق دی او د ايمان راوړلو اقتضا داده يا هغه ده، ځکه چې د هيڅ يو شريعت تر زده کړو لاندې نه وو راغلی. هغه سم چاری، امين، پاک لمنی او د خلکو مينه پال سړی وو، محرومانو ته رسيده او له بېوزلو سره يې مرسته کوله او البته هيڅکله يې د مشرکانو په مذهبي طريقو او مراسمو کې ګډون نه کاوه، ويل کيږي چې د ابراهيم خليل له آئين سره يې آشنايي درلوده او ددې باور لرونکو له يوې ډلې سره يې تګ راتګ درلود، خو دا خبره دومره روښانه بنسټ نه لري، له دې پرته له کتاب او ايمان سره د هغه د نه آشنايي په اړه له قرآني تصريحاتو او څرګندونو سره اړخ نه لګوي. او هغه مهال، که يو څوک فطرتاً پاک او ذات او ضمير يې له هر ډول ککړتيا تش او پاک وي، له هغه جهته نه چې مثلاً يو چا کتاب لوستی وي او زده کړو له رذايلو لېرې کړی دی. نه، کولی شي ذاتاً ښه او مهربان، له بديو لېرې او د حق غوښتونکی سړی وي. پيغمبر ذاتاً د خير او د خلکو خدمت ته عاشق او لېوال وو. نو پر دې بنا،«ضالّ» يا لاروركی، چې په آيت کې راغلی، په دې معنا نه دی چې مثلاً پيغمبر کوم خلاف يا خطا کار کاوه او الله تعالی له هغوی لېرې کړی دی.

سربېره پر دې، د «هدايت» اصلي معنی يعنی مقصد ته رسول او رهبري [په لار وړل] ده، نه لارښوونه. نو که يو څوک هر څومره پاک هم وي او په انسانيت کې بشپړ وي، تر هغه چې الله هغه ته نه وي ويلي له کوم مسير او تګلارې لاړ شي او هغه قدم په قدم نه بوځي او مقصد ته يې و نه رسوي، له دې نظره هغه «ضالّ» دی. که الهي هدايت نه وي، انسان به چرته لاړ شي؟ بايد الله يې لاس ونيسي او هدايت يې کړي او مقصد ته يې ورسوي.

قرآن «هادی» دی، يعنې زموږ لارښود او راهبر دی او د هدايت د مسير او تګلارې په اوږدو کې موږ ته وايي چې څه وکړو او له کومې لارې لاړ شو. کوم وخت چې سړی راهبر ونه لري، په هرې کچې چې هم ښه ذات ولري، د خپل عقل پر تکيه نه شي کولی سم مسير او تګلاره تر پايه ووهي، دا خو لا پرېږده چې و غواړي نورو ته هم لارښوونه

وکړي. په خپل بنسټه عقل خو بيخي نه شي کولی د الله او آخرت په اړه يو سم تصور او انځور ولري او دا چې دقيقاً له دوست او دښمن سره څه ډول چلن وکړي او مصلحت او مفسدت په هر کار کې څه دی؟ نو ويلی شو چې په دې معنا پيغمبر له دين او ايمان څخه خبر نه درلود. «ضالّ» مګر په دې معنا نه دی چې ته بې لارې وې او مونږ ته رهبري کړې او په لارې مو سم کړې؟

د قرآن له نظره ضلالت او هدايت مرتبې او درجې لري. هدايت مرتبې لري. قرآن حتی هدايت انسان ته نه ځانګړی کوي. قرآن د موسی او هارون له ژبې نقل کوي چې فرعون ته يې وويل: قَالَ رَبُّنَا الَّذِي أَعْطَى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهُ ثُمَّ هَدَى [طه ۵۰ (۵۰ :۲۰ )] زموږ پالونکی رب هغه دی چې هر موجود ته يې د هغه متناسب او وړ خلقت ورکړ او وروسته يې هغه په خپله لار هدايت کړ. انسان ډول ډول هدايتونه او ضلالتونه لري. موږ اوس د هغوی د حس په هدايت او د غريزې په هدايت پورې کار نه لرو. يو له هدايتونو د عقل هدايت دی. الله تعالی چې هر انسان ته عقل ورکړی دی، الله تعالی هغه د عقل په توسه له ضلالت څخه ژغورلی دی. ډېرى داسې مسئلې شته چې حتا وحی ته ضرورت نه لري او انسان د روښانه عقل او د خپل فطري او خدای ورکړي عقل په حکم پر هغوی پوهېږي او اصلاً نه لار ورکی کېږي د انسان د انسانيت مايه د هغه عقل دی د همدغه عقل په حکم ډېريو حتا د جهالت په وخت کې هم شراب نه خوړل. بت پالنه هم همدا ډول ده. يو شمېر داسې ول چې مخکې له دې چې پيغمبر په پيغمبرۍ مبعوث شي هغوی ته يې «حنفاء» ويل. هغوی د بتانو د نمانځنې مراسم په ټوليزه توګه پرېښې ول او له هغو يې نفرت کاوه. او په اوسنۍ اصطلاح هماغه روڼ اندی يې هغوی ته اجازه نه ورکوله چې بت پرست اوسي، د هغوی عقل ورته اجازه نه ورکوله.

پيغمبر اکرم هم مخکې له دې چې په رسمي توګه وحی پرې نازله شي، د خدای ورکړي ډېر عقل په حکم ډېريو څيزونو ته هدايت شوی وو. پيغمبر ولې په «محمد امين» معروف وو؟ هغه داسې يو سړی وو چې هيڅ وخت يې خيانت ته پر امانت ترجيح نه ورکوله او امانت يې له دې جهته چې امانت وو خوښاوه. که پيغمبر رسالت ته مبعوث شوی هم نه وای، په ټول عمر کې يې يو دروغ هم نه ويل. دا هدايت، له وحی مخکې وو. پيغمبر که رسالت ته مبعوث شوی هم نه وای، په ټول عمر کې يو ذره هم د امانت او سپېڅلتيا له لارې نه بېلېده. خو له دې ټولو سره سره د عقل هدايت، د عقل هدايت دی او د پرښتې په

توسه پټ هدایت نه دی د پرښتې هدایت یوه درجه د عقل له هدایته اوچت دی. او بیا هغه هدایت چې د وحی له لارې د جبرئیل په توسه کیږي ډیر اوچت دی. الله کولی شي پیغمبر ته ووایي: ای پیغمبره! موږ تاته عقل درکړ او ته مو هدایت کړې او که تاته مو عقل نه وای درکړی ته لاروړکی وې. همدا راز هغه پټ او مرموز ځواک چې تل مو له تاسره مل کړی وو ته مو هدایت کړې او که هغه نه وای تا په دې درجه هدایت نه درلود او ګمراه وې. له ټولو اوچتتر که زموږ وحی نه وای ته نه پوهیدې کتاب څه څیز دی او ایمان څه دی. چې د شوری په سورت کې فرمايي: وَكَذَلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحًا مِنْ أَمْرِنَا مَا كُنْتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ ....[شوری ۵۲ (۴۲:۵۲)]«او په دې توګه مو له خپله امره يو روح تاته وحی کړ، ته مخکې له دې نه پوهیدې کتاب څه څيز دی او نه ایمان. ....»

او دریم: وَوَجَدَكَ عَائِلًا، مګر ته مو عایله مند ،فقیر، اړ او محتاج ونه موندې؟ «عائل» یعنې اړ او محتاج او هغه څوک چې د خپلې کورنۍ د خرخ او مصرف وسه او توان ونه لري. فَأَغْنَى. نو ستا اړتیا مو لیرې کړه ته مو بې نیازه کړې. پیغمبر د ځوانۍ دوره د يوې مودې لپاره په شپانه توب تیره کړه او بیا ورپسې د ابوطالب، [ومو ویل چې پخپله هم فقیر وه] تر څارنې او پالنې لاندې حضرت پیغمبر له هغه سره د هغه په تجارتي کاروانو کې، کار پیل کړ او یو ځل دوه ځلې يې له هغو کسانو سره چې د خدیجې په چوپړ کې وو، تجارتي سفرونو وکړل. محمد په خپل چلن او اخلاقي کړنو او عمل کې داسې سپیڅلتیا، پاکې، صداقت او سموالی څرګند کړ چې د هغې محترمې مېرمنې علاقه او مینه ورسره پیدا شوه او هغې پخپله د واده وړاندیز ورته وکړ، سره له دې چې له دې مخکې خدیجې دوه ځله مېړه کړی وو او ستر بچیان يې درلودل او پنځلس کاله له حضرت پیغمبر، ستره وه. په دې ترتیب، محمد امین په یو ځل هر څه، کور او ژوند، کار او دنده او سرپناه پیدا کړل. او رسالت ته له مبعوث کیدو وروسته هم، مېرمن يې چې پر شخصیت يې مینه وه، ټول ثروت او شته يې د هغه د لارې او مکتب په پښو کې وشيندل او د میرمن دا سرښندنه او فداکاري ددې لامل شوه چې د پیغمبر لاس له مالي اړخه ډیر آزادتر وي.

د پیغمبر د ژوندانه د دغو دریو خاطرو او پیښو په یادولو سره الله تعالی وايي چې نو ولې ناراحت او خفه يې؟ ستا ژوند، له ډیر وړوکوالي له پیو خوړنې او ماشومتوب له مهاله او زلمیتوب او ځوانۍ تر مهالونو زما د ساتنې او حمایت تر سیوري لاندې تېر شوی دی.

اوس هم نو د څه تشویش ځای دی؟ زه لکه د تېر په څېر درسره یم. الله تعالی خپل حبیب ته وايي: د خپل حال واقعیت ته دې پاملرنه وکړه. تېرشوي ژوند ته دې وګوره .........
آیا پالونکي رب دې ته ترک کړی یې؟ او آیا ستا رب کله پر تا غوسه شوی دی او تاسره یې دښمني کړې ده؟ حتّی تر دې مخکې چې تا پیغمبر کړي او دا عهد او پیمان له تا سره وتړي ته یې کله هېر کړی یې؟ آیا د الله عنایت او رعایت ستا د یتیمۍ پر مهال له تا سره نه وو؟ آیا د خپل پالونکي رب هدایت ستا د حیرانتیا او لارورکۍ له موندنې وروسته ستا مرستې ته نه دی رسېدلی؟ آیا ستا د پالونکي رب بخشش او عطاء ستا فقر او تنګلاسي ونه نغاړله او ستا فریاد ته درونه رسېد؟
ته دنیا ته یتیم راغلې او الله پناه درکړه. او زړونه یې تاته متوجه کړل. ان تردې چې ستا د تره ابوطالب زړه یې، سره ددې چې ستا په دین نه وو!
ته فقیر او تنګلاسی وې. خو الله ستا زړه په قناعت شته من کړ. الله تعالی ته د خپلې مېرمن حضرت خدیجې (رض) په مال او شتو، ثروتمند او شته من کړې په داسې ډول چې د فقر او نشمتنۍ احساس ونکړې، او د خپل چاپېریال د خلکو شتو او ثروت ته دې سترګې ونه ګنډې! ته د جاهلیت په منځ کې ستر شوې، هغه جاهلیت چې ګډوډ نړۍلیدونه، اندونه، عقیدې او باورونه یې درلودل. او له منحرفو او کږو احوالونو، وضعیتونو، کړنو، او ویناو څخه برخمن ول. ستا روح له هغه جاهلیت سره هوسا او برابر نه وو او ور وا نه وښت. او تا روښانه او امن لار پکې و نه موندله. روښانه لار دې نه د جاهلیت په اوسېدونکو کې، او نه د عیسی او موسی په لارویانو کې وموندله. د آسماني ادیانو لارویانو هغه تحریف کړي ول او هغه یې ګډود کړي او اړولي ول او منحرف شول او په کږو او بې لارو لاړل او سرګردانه او حیران شول... په دې حال او احوال کې سپېڅلی رب ستا فریاد ته ورسېد او ته یې هدایت کړې او لارښوونه یې درته وکړه ، چې ددې په رڼا کې یې تاته وحی وکړه، او ستا تراو یې له الله سره را منځته کړ. د عقیدې د سرګردانۍ په منځ کې، او د کږو وږو درو د لار ورکۍ په منځ کې، هدایت کول، لارښوونه او لارې ته سمول داسې لطف او فضل دی چې هیڅ لطف او فضل ورسره سیالي او برابري نه کوي. له ګډوډۍ او بې لارېتوب څخه هوساینه، آرامتیا او امن کېدل دي، داسې ګډوډي او بې لارېتوب چې هیڅ ګډوډي او بې لارېتوب ورته نشي رسېدلی، او له داسې یو درد او رنځ څخه ژغورنه ده چې هیڅ درد او رنځ ورسره برابر او سیال نه دی. ددغه هدایت عظمت او ستروالی هغه وخت ښه څرګندېږي چې خپل لید هغه درد او رنځ ته

واړوو، چې پیغمبر په دې پېر کې ورسره مخامخ وو او حس کاوه یې. کله چې وحی وځنډېده، او د مشرکانو پېغورونه او ملامتي ډېره زیاته شوه له محبوب څخه د محبوب بېلتون رامنځته شوی دی... په دې اوضاع او احوال کې دا آیتونه رارسېږي او ورته تذکر، اطمینان او ډاډګېرنه ورکوي چې پالونکي رب هغه پرېښی نه دی او نه یې ترک کړی دی. هغه یې په یو ډاګ او بیابان کې سرګردانه نه دی پرېښی او نه یې هغه ترک کړی دی.

---

۶ ـ له دې آیت وروسته، د پالونکي رب له تیرو لطفونو درې ځله یادونه کوي، درې ځلې هم له اوسنیو او راتلونکو لطفونو، او درې ځلې هم له هاغه ژمنې او مسئولیت چې ددې نعمتونو په وړاندې یې لري. لومړنی نعمت چې ورته یادوي د پیغمبر د غبرګې یتیمۍ زمانه ده چې له زېږېدو مخکې یې پلار وفات شو او یتیم نړۍ ته راغی، او لا په ډېر وړوکتوب کې یې مور وفات شوه او ورپسې نیکه یې [عبدالمطلب] او بیا تره یې [ابوطالب] چې په ترتیب یې د هغه د پالنې مسئولیت په غاړه اخېستی وو، او د هر یو په وفات کېدو بیا بیا یتیم شو.

۷ ـ هدایت او ضلالت نسبي چارې دي. هر څومره چې د اسلام مکرم پیغمبر په رښتینولۍ، صداقت او امانت او په ښه اخلاقو کې د خپل ښار او سیمې تر ټولو ډېر مشهور او منل شوی وو، خو د قرآن د بیان پر بنا، د مخکینیو انبیاؤ د تجربو په نسبت له غافلینو څخه وو «.... وَإِنْ كُنْتَ مِنْ قَبْلِهِ لَمِنَ الْغَافِلِينَ » [یوسف ۳ (۱۲:۳)] او له دیني کتابونو او ایمان څخه یې هیڅ خبر نه درلود. «... مَا كُنْتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ ... » [شوری ۵۲ (۴۲:۵۲)]. سره ددې چې ځینیو مفسرینو، دا اشاره د مکې په کوڅو بازارونو یا صحرا کې د پیغمبر د ماشومتوب په دوران کې د هغه د ورکېدو په اړه ګڼلې ده چې ډېر د قرآن له حقیقت سره سمون نه خوري او لېرې ښکاري.

۸ ـ «عائل» نیازمند، اړ او نشتمن ته ویل کېږي. دا کلیمه په قرآن کې یو ځل بل ځای د «غنی» په مقابل کې راغلې ده:«.. وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيكُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ إِنْ شَاءَ .. »[توبه ۲۸ (۹:۲۸)]. د اسلام پیغمبر له خدېجې سره دواده تر مخه له مالي اړخه شته من نه وه اوله دې اړخه یې لاس او پښې بندې وې خو له واده وروسته یې ډېر شته او امکانات د خپلې موخې په مسیر او تګلاره کې لاسته راوړل.

---

فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ﴿۹﴾

نو [ددې نعمتونو په پاس، ته هم] یتیم ته قهر [او غوسه] مه کوه. (۹)

وَأَمَّا السَّائِلَ فَلَا تَنْهَرْ﴿۱۰﴾

او [بېوزلی فقیر] سوالګر [له ځېله ځانه] په رټلو مه شړه،

وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ﴿١١﴾

او [په پای کې] د خپل پالونکي رب نعمتونه [او لورونې خپل ځان ته او نورو ته] بیانوه.(۱۰)

---

پیغمبر ته له یتیمۍ او بې پلارۍ څخه د الله د پناه ورکولو په یادولو، او له سرګردانۍ او حیرانتیا څخه د هغه د ژغورلو لپاره د لارښوونې، او هدایت په یادونه، او له فقر او تنګلاسۍ څخه د نجات ورکولو په ذکر، متعال الله هغه ته او هاغو مسلمانانو ته چې له هغه وروسته راځي، لارښوونه کوي چې هر یتیم چې ومومي هغه ته پاملرنه وکړي، او له هر ګدا سره مرسته وکړي، او د الله تعالی له پراخو او زیاتو نعمتونو یادونه وکړي، او د الله تعالی د نعمتونو شکر پر ځای کړي. یعنې بحث دادی چې آیا الله یوازې غواړي خپل پیغمبر ته تسلي او ډاډګېرنه ورکړي یا غواړي کومه نتیجه هم واخلي؟ هو، درې نتیجې یې اخېستي دي. له پیغمبره د دریو تشویشونو رفع کول د دریو ځانګړو لفظونو په ذکر، او په پای کې درې نتیجې اخېستنې. چې په حقیقت کې یې پیغمبر ته درې فرمانه ورکړي دي او درې دندې یې ورته سپارلي دي چې په واقعیت کې دا فرمانونه د ټول امت لپاره دي او دا دندې د ټول امت په غاړه هم دي چې سرته یې ورسوي.

لومړۍ دنده: فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ. «فَ» یعنی بناپردې. وایي اوس نو چې تا پخپله د یتیمۍ خوند څکلی دی او هغه دې په خپل ټول وجود حس کړی دی، نو یتیم له ځانه مه شړه او هغه مه رټه. پر هغه قهر مه کوه. «قهر» یعنې برلاسی ستغوالی او له پاس او پورته خوا چلن. قهرجن چلن یعنې ستغ چلن. فرمایي له یتیم سره مهربان اوسه. دا د رسالت لومړنی درس. ډېر توپیر لري چې یو څوک یو څیز وپېژني، له هغه چا سره چې هغه څیز یې څکلی وي پیغمبر پخپله د یتیمۍ د فقر او یوازېتوب خوند څکلی وو. چون ته پخپله د یتیمۍ په درد پوهېږې نو یتیم د لاس لاندې مه مغلوبوه، د یتیم له یتیمۍ ناوړه ګټه مه اخله چې د لاس لاندې یې مقهور کړې؛ یعنې یتیم ته دومره عزت او درناوی ورکړه چې هیڅ احساس ونکړي چې پلار یې له لاسه ورکړی دی او د لاس لاندې شوی دی.

دویم: وَأَمَّا السَّائِلَ فَلَا تَنْهَرْ. سوال کوونکی «سوالګر» مه شړه. ویلې یې دي «سوال کوونکی» یعنې هغه څوک چې څه نه لري او له تاپې غواړي، هغه که مالي وي یا غیر مالي وي. دا چې وایي «مه شړه» غیر له دې دی چې ووایي «یو څه ورکړه» کله انسان څه نه

لري او څه نه ورکوي. پر انسان واجب نه دي چې هر وخت يو سائل راغی، هغه که د معنا سائل وي يا مادي سائل وي، هرومرو يو څه هغه ته ورکړي خو بايد هغه په مهربانۍ او مينه رخصت کړي نه په شدت او تونديۍ. په دې اړه قرآن کريم ډېره پېرزوينه لري. نو «سائِل» يعنې نيازمند، اړ او غوښتونکی. «نَهر» هم يعنې چيغې وهل، رټل او له ځانه لېرې کول. بس د ځينو چلن همدا ډول دی نو. وايي: څه تېر شه! موږ پخپله زر ډوله ستونزې او مشکلات لرو، ته هم راغلی يې چې زموږ په سر بار شې! زموږ خپل خرڅ نه راوځي اوس ته هم راغلی يې چې تاته هم څه درکړو! په اسلام کې په ټينګار توصيه شوې ده په قرآن کې هم دي چې يو څوک تاسو ته راغی او حاجت او اړتيا يې درلوده که نه مو درلودل يا ومو نشو کولی، لږ تر لږه په نرمه ژبه په ښه طريقه د عذر په ډول نه په چيغو او جګړه ماره طريقه، له هغه سره خبرې وکړئ. په واقعيت کې په هماغه خوږه ژبه يو څه، يعنې ښه خبره ورکړئ او هيله من يې کړئ چې مثلاً انشاءالله که لاس مې وچلېد په سترګو خامخا ستا په خدمت کې يم او اوس ډېر شرمنده يم چې نشم کولی څه درته جوړ کړم او يو خدمت دې سرته ورسوم او په ښه دې راشم او ددې په څېر نورې ښه خبرې. يعنې لږ تر لږه نه ښايي اړ او حاجتمند خفه کړو. هغه څوک چې خپل شخصيت يې مات کړی او راغلی له سړي سوال او غوښتنه کوي موږ ته نه ښايي چې په زخمونو يې مالګه ودوړوو. نو دا هم شو دويم درس.

دريم: وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ. تاته زموږ دريم فرمان دادی: د الله نعمتونه مه پټوه هغه نعمتونه چې الله درکړي بيان کړه او په ژبه يې ووايه. او البته دا هم پخپله شخص ته ګټور دی، چون ځان ته تلقين دی چې الله زما د ژوند ځومره ستونزې حل کړې دي او په څومره سختو او د نهيلۍ په شرايطو کې يې زما لاس نيوی کړی دی او زما نارو او فرياد ته رسېدلی دی. او هم نورو ته ګټور دی او د زده کړې وړ. موږ معمولاً عادت يو چې که يو څيز ولرو، غواړو هيڅ يې ښکاره نه کړو. استدلال مو هم دادی چې کېدی شي هغه وخت خلک زموږ څخه انتظار، تمه او توقع ولري. د همدي لپاره ډېری کسان چې امکانات او شته لري، هغه پټ ساتي. په داسې حال کې چې الله تعالی ددې چلن پر عکس او خلاف فرمان ورکوي او وايي الله تعالی چې تاسو ته نعمتونه درکړي ووایاست او نقل يې وکړئ، د الله نعمتونه چې زموږ په نصيب شوي دي، بيان يې هم پخپله موږ ته، د مثبت تلقين له نظره، ښه دی او هم نورو ته.

د نعمت شکر زموږ د ليد په زاويې پورې اړه لري په دې اړه يو چا يو ښه مثال ورکړی چې په آسانۍ په کې د شکر د ليد زاويه تشريح کېدی شي، په دې ډول چې: الله تعالی د دوو کسانو روزي زياته کړه، خو ورپسې سمدلاسه د هر دواړو زامن ناروغ شول. لومړني وويل: بدقسمتۍ ته ګوره! چې څنګه مو پيسې لاس ته راغلې، بچی مو بيمار شو او ټولې مصرف شوې. له خدايه ځار شم چې پيسې يې لا راکړې نه وې بېرته يې واخېستې! دويمی وايي: يا الهي ستا له لطفه ځار شم! چې زما د بچي له بيمارۍ مخکې دې راته د ډاکټر او درمل مصرف راولېږه. وګورئ دواړه پېښې يو شان دي، خو د يو غبرګون اعتراض، شکايت، خوابدي، غم او غوسه ده او تل مادي نوې غوښتنه ده، او دا پېښه بدبختي او بدقسمتي ګڼي، بل خوښ دی چې مخکې له دې چې ماشوم يې رنځور شي د علاج او درمل خرڅ او مصرف يې ورته رسولی دی. وګورئ دوی دواړو کې څومره تو پير دی. نو پر دې بنا، د الهي نعمتونو بيان پخپله وګړي سره مرسته کوي او د انسان په حال او روحيه مثبته اغېزه کوي.

دا چې وايي د خدای نعمتونه مه پټوه، ويې وايه، يادونه يې وکړه. دې ته اصطلاحاً وايي «نعمت ته تحدث». هغه نعمتونه چې الله انسان ته ورکړي، له دې لېده چې خلکو ته يې ذکر وکړي يا ونکړي څو حالته کېدی شي ولري چې ځينې يې مذموم، بد او کرغېړن دي او ځينې يې ممدوح، ښه او د ستاينې وړ دي. يو دا چې د نعمت ذکر کوي خو د فخر او وياړ په مقام کې او د خلکو په مخکې د څرګندولو او ځان ښودلو لپاره او ددې لپاره چې ووايي چې زه يم چې داسې يم. دلته هغه ځای دی چې نه ښايي د نعمتونو ذکر وشي؛ يعنې که ويل يې ددې سبب کېږي چې بل څوک په خپل ځان کې د حقارت او ټيټوالي احساس وکړي، نه ښايي وويل شي. هغه ځای کې چې د نعمت ذکر د تحقير مفهوم لري بايد و نه ويل شي.

دويم حالت د لومړي حالت عکس دی. يعنې ځينې که په «لرم لرم» غواړي خلکو ته آزار ورکړي او ويې رنځوي او د اخلاص او حقيقت له لارې وځي. ځينې نور په «نه لرم نه لرم». الله تعالی ورته نعمت ورکړی خو زړه يې نه غواړي چې نور پرې پوه شي او تل يې پټوي. لکه د هغو کسانو په څېر چې تل يې زړه غواړي د ځان په نسبت د نورو ترحم راوپاروي؛ روغ رمټ دي خو تل آه او فرياد کوي ځګېروي کوي. دا يو ناوړه عمل دی، بلکه يو ډول ګناه ده. الله تاته روغتيا درکړې، ووايه روغ رمټ يم، ولې بېځايه آه او سورې

وباسې؟! چې کولی شې په نبغ قد حرکت وکړې، ولې ځان کړوپ کړوپ کوې؟! ولې خپل ځان له هغه کچې چې مات او بیمار یې، زیات مات او بیمار څرګندوې؟! ولې ځان له هغه کچې چې فقیر یې، زیات فقیر ښکاره کوې؟! ولې د خدای نعمتونه پټوې ددې لپاره چې د نورو ترحم را وڅکوې؟! په الله اعتماد نه لرې؟! دلته ددې ځای دی چې انسان نعمت ته تحدث وکړي او ووایي « الحمد لله موږ یې لرو اړتیا نه لرو الله موږ ته راکړې دي». که انسان اړتیا نه لري یا په یو ټاکلي برید کې اړتیا نه لري او بیا ورپسې هغه پټ کړي او خپل ځان اړمن یا اړمن تر له هغه بریده چې اړتیا لري څرګند کړي، دا یوه ګناه ده. دلته دی چې فرمان ورکوي وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ. ووایه بیان کړه هغه نعمت چې الله تاته درکړی دی، له خلکو یې مه پټوه، د الله نعمت دی او د الله خوښېږي چې کوم مهال چې چاته نعمت ورکوي خلک یوه شي چې الله هغه د نعمت وړ ګڼلی. په عین حال کې د الله نه خوښېږي چې یو څوک وغواړي د الله نعمت په داسې ډول خلکو ته څرګند کړي چې له دې لارې خلک تحقیر کړي.

دا لارښوونې چې د یتیم اکرام ته او له هغه سره له قهر او غوسې، د هغه د زړه له ماتولو، او تحقیرولو څخه ځان ساتل، او د بېوزلي او ګدا اړتیا لېرې کول او له هغه سره نرمي کول، او د هغوی درناوی کول او د حرمت ساتل یې ـ لکه څنګه چې په ځلونو ویل شوي ـ د کفر، الحاد، دښمنانګی، زیرمو اچوونو، پانګوونو، زرپالنو او مال پرستۍ په چاپېریال کې له مهمترینو پیغامونو څخه دی. داسې یو چاپېریال چې په هغه کې د داسې یو ضعیف او کمزوري حق چې له خپله ځانه د توري په توسه دفاع نه شي کولی، نه رعایت کېږي. اسلام داسې یو چاپېریال ته له خپل شریعت سره لوړتیا ورکړه، او حق او عدالت، تقوا او پرهیزګارۍ او د الهي قوانینو رعایت ته یې ورساوه. هغه خدای چې له خپلو قوانینو څارنه او پالنه کوي، او د خپلو قوانینو لوری نیسي او ملاتړ یې کوي، او کوم مهال چې د ضعیفو او بېوزلو بندګانو پر حقونو ظلم او تېری وشي، نو خشم او غوسه یې راپارېږي، داسې ضعیفه بندګان چې کوم ځواک او توره نه لري چې له ځانه پرې دفاع وکړي.

خو د الله له نعمتونو خبره کول ـ په ځانګړې توګه د هدایت او ایمان نعمت ـ د نعمت د ښبونکي د شکر پر ځای کولو له ډولونو او بڼو څخه یو ښه ډول او بڼه ده.چې د شکر پر ځای کولو دا ډول او بڼه د الله له بندګانو سره په مرسته او نیکۍ بشپړېږي. د الله له

بندګانو سره نيکي کول،د شکر پر ځای کولو عملي بڼه او انځوردی،چې بې غبرګه بڼه او ارزښتناکه خبره ده.

هو، لکه څنګه چې مو وويل، د وحی په نزول کې د ځنډ او دمې او تعطيل له پېر وروسته، پيغمبر ډاډګېرنه مومي او چمتو کيږي چې په پيل شوې لارې، په کلکو او ټيکاوترو ګامونو مخ پر وړاندې ولاړ شي. نو ددې دليل چې په سورت کې د «ک» ضمير راغلی دی او ورپسې فعلونه چې ټول پيغمبر ته خطاب دي، پر دې ټينګار کوي چې پيغمبر د لارې ادامې او د رسالت اداء کولو ته هېله من کړي او زړه يې ولګي. خو آيا ددې سورت د خبرې مخه يوازې پيغمبر ته ده؟ يا موږ يې هم تل د ځان لپاره خطاب وګڼو او زموږ لپاره هم پيغام لري؟ مګر موږ په خپل ژوند کې کله نا کله ناراحت، غمګين او نه خوابدي کيږو او آيا تېر مهال مو نه هيرېږي؟ نو، کيدی شي موږ هم ددې آيت مخاطب اوسو. هغه مهال چې له ستونزو سره مخامخ کيږو، موږ هم کولی شو د خپل تېر عمر د دوسيې پاڼې واړوو، او خپل تېر عمر ته وروګرځو او ووينو چې څه ستونزې او تنګلاسۍ مو درلودې، هغه چې د ماشومتوب پر مهال مو درلودې او يا په ورپسې مهالونو کې، هغه که زموږ په کار کې وې، که زموږ په ژوند او اړيکو کې وې، او په سلګونو ځله، زرګونو ځله مو لېدلي دي چې هر ځل د الله لطف پر موږ شوی دی او زموږ د ستونزو غوټه يې پرانيستې ده او موږ سره يې مرسته او ياري کړې ده.

د حضرت علي (رض) قول دی چې فرمايي: عَرَفْتُ اللَّهَ سُبْحَانَهُ بِفَسْخِ الْعَزَائِمِ وَ حَلِّ الْعُقُودِ.[نهج‌البلاغه، «قصار کليمې»، ۲۵۰ کليمه] يعنې ما الله له دې لارې وپېژاند چې هر مهال به ډاډه وم چې يو کار سر ته رسولی شم، و به مې ليدل چې نه کيږي، خو ددې پر عکس، کوم مهال به مې چې يو کار نه کېده او د کېدو لار به يې بنده وه او هيڅ فکر به مې نه کاوه چې سم به شي، نابېره به مې ولېدل چې د کار بنده غوټه به خلاصه شوه، نو د پېښو تر شا يو بل لاس دی او سړی نه شي کولی ډېر پر خپل ځان حساب وکړي. لنډه دا چې دا پيغام زموږ لپاره هم دی.

د لومړنۍ توصيې په اړه، يعنې د يتيم په اړه د سپارښتنو په برخه کې هم بايد دې نکتې ته پاملرنه ولرو چې په هغه پېر کې چې نه کوم دولت وو، او نه کومې بودجې شتون درلود، نښتې او جنګونه به کېدل چې ډېرې مړينې او هلاکتونه به يې رامنځته کول په داسې ډول چې کله به د قبيلې شل تر دېرش سلنه نارينه وژل کېدل او په پرله پسې توګه به يتيمان د

ټولنې پر اوږو بار پاتېدل؛ په ځانګړې توګه په هغه مهال او سيمه کې چې هرې کورنۍ ډېر زامن درلودل او که د بېلګې په توګه سل کسان به په جنګ کې ووژل شول او په منځنۍ توګه که هر يوه پنځه بچيان درلودل، په يو ځل به ۵۰۰ ماشومان يتيم او بې پالونکي کېدل او څوک نه وو چې هغوی اداره کړي. يعنې په هغه زمانه کې، د يتيمانو اداره د ورځې ژوندۍ مسئله ګڼل کېده. وسمهال د نن ورځې په پرمخ تللو ټولنو کې دولتونو کابو دا ستونزه حل کړې ده، يعنې هماغه کار کوي چې موږ مسلمانانو، له هاغو ټولو توصيو سره چې زموږ په دين کې په دې اړه شوي دي، بايد کړی وای. دوی د عملي تجربو په نتيجه کې حل لار پيدا کړې ده. يعنې وسمهال نور يتيم په هغه پخوانۍ او مادي معنا لږ تر لږه په اوسنيو لوېديزو ټولنو کې شتون نه لري. بودجې يې ورته په نظر کې نېولي او ځانګړي کړي دي او دولت د يتيمانو د پالنې مصرف په غاړه اخېستی دی. ان تر دې چې مور ته هم چې د خپل ماشوم پالنه او ساتنه کوي، د ماشوم د مصرف پيسې ورکوي، دا لا څه چې د ماشوم لپاره پالونکې ونيسي، له دې توپيره پرته چې ښځې طلاق اخېستی وي او که کونډه شوي وي. له هغو قوانينو سره چې پرمخ تللې ټولنې يې لري يتيمان لږ تر لږه له مالي اړخه بسيا دي، البته پرته له هغو محرومو سيمو يا نورو طبقو چې په هره ټولنه کې شته. خو له دې سره سره نه شو ويلی چې د يتيمۍ ستونزه په بشپړه توګه له دې ټولنو لېرې شوې ده. چې البته دا ستونزه زموږ په هيواد کې له هر ليده او له ټولو برېدونو تېرې کوي. موږ وسمهال داسې ماشومان لرو چې ظاهراً يتيمان نه ګڼل کيږي، خو په واقعيت کې دمالي ستونزو او نېمګړتياو په لرلو سره يتيمان دي، هغوی خو لا څه کوي چې پلرونه يې له لاسه ورکړي او په واقعيت کې يتيمان دي. هغوی خو په غبرګ ظلم اخته دي. محروميت يې غبرګ دی. او د هغوی مسئله خو يوازې مالي نه ده. يتيم خو يوازې خوراک او څښاک نه غواړي؛ يتيم محبت غواړي، موسکا غواړي، يوه خوله خندا غواړي، په غېږ کې نېول غواړي. پر دې بنسټ، د قضيې يو اړخ دادی چې که په کومه کورنۍ کې د مور او پلار سيوری د بچيانو پر سر وي هغوی بايد تل د ټولنې د محرومانو په فکر کې اوسي. او دا ددې سورت يو له سترو درسونو څخه دی . او دلته ښايي دا هم اضافه کړو چې له «سائل» او اړمن څخه مقصد حتماً هغه څوک نه دی چې راشي او د ګدايي لپاره سړي ته لاس اوږد کړي، زمونږ چاپېريال له اړمنو ډک دی. «سائل» سؤال کوونکی دی او «سؤال» يعنې اړتيا. او اړتيا تل شتون لري.

ددې سورت بل ستر درس زموږ په ژوند کې د الهي لطف او یارۍ یادول دي. او د الله د نعمتونو بیابیا ویل او په پرله پسې توګه د هغوی بیانول دي. بیا هم در په زړه کوم چې موږ یو مُنعم لرو چې هر یو نعمت له هغه دی، او دا د قرآن یو له مهمو او ښستېزو درسونو څخه دی. د پیغمبر دا دعا به مو اورېدلي وي چې: اَللَّهُمَّ مَا بِنَا مَنْ نِعْمَة فَمِنْک. یعنې یا الهي، هر نعمت چې موږ ترې برخمن یو، که ستړګې لرو، که غوږونه لرو، که سالم بدن لرو، که شته لرو، راحت او سوکالي او مور او پلار او کور او ښه ژوند لرو، ټول له تا دي، لا اِلَهَ إلاّ أَنتَ سُبحَانَکَ فِقِنا عَذابَ النّارِ.

صدق الله العليّ العظيم.

---

۹ ـ د یتیم جسم مادي تغذیې ته اړ دی او روح او روان یې پاملرنې، درناوي، اکرام او د مینې محبت غیرږ ته اړتیا لري. په قرآن کې د یتیم د لغت ۲۳ ځله تکرار [مفرد او جمع، معرفه او نکره] په هغه تاریخي مقطع کې ددې موضوع د اهمیت څرګندوی دی. له یتیمانو سره احسان، د هغوی مړول او هغوی ته انفاق کول، په ځلونو په قرآن کې توصیه شوی دی [انسان۸ (۸:۷۶)، بلد ۱۵ (۱۵:۹۰)، بقره ۸۳ (۸۳:۲) او ۱۷۷ (۲:۱۷۷) او ۲۱۵ (۲۱۵:۲)، نساء ۸ (۸:۴) او ۳۶ (۳۶:۴)، انفال ۴۱ (۴۱:۸)، حشر ۷ (۷:۵۹)]، البته دا د موضوع مادي جنبه ده، خو د مینې پاللو، د کرامت قایلېدلو، پناه ورکول او عاطفي جنبو په اړه هم قرآن نورې سپارښتنې کړې دي [فجر ۱۷ (۱۷:۸۹)، ضحی ۶(۶:۹۳) او ۹(۹:۹۳)، ماعون ۲ (۱۰۷:۲)].

۱۰ ـ نورو ته حدیث کول، د داسې یو څیز ښکاره کول او بیا ویل دي چې پټ دی. لکه څنګه چې په قیامت کې ځمکه خپل معلومات او اخبار بیا وایي او ښکاره کوي « يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا» [زلزله۴(۴:۹۹)]. یهودي متولیانو به خپل مقلدان، مسلمانانو ته د تورات د حقایقو له حدیث کولو منع کول«...أَتُحَدِّثُونَهُمْ بِمَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ لِيُحَاجُّوكُمْ بِهِ عِنْدَ رَبِّكُمْ...» [بقره ۷۶(۷۶:۲)]. کوم نعمتونه چې لرو بیانول یې، هم د مثبت لید ښنبه او د شکر او منني احساس دی او هم نور تشویق، تحریص او هیله من کوي.